# لرغونپېژندنه
# په افغانستان کې





ليکوال : محقق نظر محمد عزيزي

ژباړن : عبدالقيوم زاهد



۱۳۸۱هـ.ش / ۲۰۰۲م

# کتاب پیژندنه


د کتاب نوم : لرغونپېژندنه په افغانستان کې

لیکوال : محقق نظر محمد عزیزي

ژباړن : عبدالقیوم زاهد

د پښتي انځور : محمد رفیع فاروق

خپرونکی : د اریک د ګرځنده کتابتونونو اداره

پرله پسې نومره : ۱۰۴

لومړی چاپ : ۱۳۸۱ هـ ش، د خپرونکي له خوا - پېښور

د چاپ شمېر : ۵۰۰ ټوکه

د مخونو شمېر : ۱۱۰

کچه : ۱۳,۵ × ۲۱ سانتي متره

د خپرونکي پته : دویم کور، رحمان بابا روډ

پوسټ بکس: ۱۰۸۴، یونیورسټي ټاون - پېښور

ټیلفون: ۸۵۰۸۳۹ - ۵۷۰۴۳۹۲ - ۵۷۰۲۹۶۲

۸۴۱۲۹۶ - ۵۷۰۲۵۳۱

فکس: ۰۹۱-۸۴۰۴۷۱

الکترونیکي پوسټ: aric@brain.net.pk

کمپوز او طبع : احمد پرنټنګ پرېس، ټیلیفون ۲۱۵۵۴۰

د ویش او پلورنې ځای: د اکبر دفتر (د افغانانو له پاره د مرستو د انسجام اداره)

بسم الله الرحمن الرحیم

د اکبر د اطلاعاتی او نشراتي منابعو مرکز (اریک) له څلورو کالو راهیسې د افغانستان ولایتونو ته د گرځنده کتابتونونو پروگرام تر لاس لاندې نیولي دي. گرځنده کتابتونونه چې د فلزي صندوقونو په بڼه جوړ شوي دي، په یو خاص ځای کې ایښودل کیږي. د سیمې خلک ورڅخه امانت کتابونه وړي، لولي یې او خپلو شاوخوا خلکو ته یې هم اوروي. کله چې په سیمه کې د کتابتون ټول کتابونه ولوستل شول، کتابتون بلې سیمې ته لیږدول کیږي او یا پرې یو شمیر نور نوي کتابونه ورزیات او هماغه ځای کې پاتې کیږي.

مونږ دا هڅه کړې ده چې د گرځنده کتابتونونو له پاره داسې کتابونه راټول کړو چې دلیکنې ژبه یې ساده او د خلکو د اړتیاوړ مطالب ولري، تر څو چې په ورځني ژوند کې له هغوی سره په دیني، ټولنیزو، اقتصادي، ښوونیزو، روزنیزو، روغتیایي، تاریخي، فني، مسلکي او... مسایلو کې مرسته وکړي.

موږ د گرځنده کتابتونو تر څنگ دا سروې هم ترسره کوو چې خلک څه ډول آثارو او موادو ته اړتیا لري او د کومو موضوعاتو او مطالبو د مطالعې هیله من دي. موږ لومړی هڅه کوو چې غوښتل شوي کتابونه له بیلا بیلو منابعو (کتاب پلورنځیو او خپرونیزو مرکزونو) څخه برابر او راونیسو. په نوموړو مراجعو کې د مطالبو او موادو د نشتوالي په صورت کې اریک هڅه کوي چې دا اړتیاوړ آثارو په تألیف، ترجمه او چاپ سره د غه تشه ډکه کړي.

د دغه موخې او هدفُ د تحقق او په عمل کې پلي کولو په منظور درې کاله

دمخه د لوستونکو د علاقې وړ کتابونو د چاپ او خپراوي کار پیل شو او له هغه وخت راهیسې تر اوسه پورې د اریک گرځنده کتابتونونو ادارې د محترمو همکارو مؤسسو په مرسته په دغه برخه کې پیاوړي گامونه اخیستي او گټور فعالیتونه یې ترسره کړي دي.

د ښه او سیستماتیک کار له پاره د اریک د ادارې استازیو او پوشمیر څېړونکو او لیکوالو یو گډهیأت وټاکل شو چې د مطلوبو کتابونو د پلان کولو، آماده کولو او چاپ کولو پړاوونه چې د تکړه او مسلکي لیکوالو له خوا تألیف کیږي، په گډه پرمخ بوځي.

دغه هیأت د افغانانو د صمیمي همکارې میرمن نانسي هـــچ دوپري، سیدمحی الدین هاشمي، فیض محمد نایاب عطایی، محمد شکیب افضلي او محمد رفیع فاروق څخه تشکیل شوی دی.

مونږ له خپلو ټولو درنو لوستونکو څخه چې د هیواد په بیلا بیلو ښارونو او کلیوالو سیمو کې زموږ له کتابتونونو څخه گټه اخلي، هیله لرو چې خپلې اړتیاوې، غوښتنې او پوښتنې راولیږي او د هیواد له لیکوالو او پوهانو څخه غواړو چې چه له موږ سره په دې لاره کې مرستندوی شي، چې وکړای شو خپلو خلکو ته لا ښه او گټور کتابونه وړاندې کړو.

په درنښت

د اریک د گرځنده کتابتونونو اداره

# فهرست

| صفحه | عنوان |
|---|---|
| ۱-۳ | **سریزه** |





# سریزه

څرنگه چې افغانستان په آسیا او په ځانگړي ډول په سیمه کې یو مهم لرغونی هېواد شمېرل کېږي، نو لرغونپېژندنه د هغه د بېلا بېلو کلتوري، ثقافتي او تاریخي دورو د پېژندنې لپاره یوازینۍ وسیله ده.

دا کتاب تر یوې اندازې پورې کولای شي چې د هیواد او سیمې د تاریخ ناڅرگندې پولې او تیاره ء کنجونه له تاریخي پلوه مطلق نه بلکې په نسبي ډول رو ښانه کړي او لرغونپېژندنه هغه د تثبیت شویو اصولو او موازاتو له لارې مشخص کړي. یا دا چې دا برخې یعني د تاریخ نویتي بهیر رد کړي.

د لرغونپېژندنې په برخه کې ددې لیکنې اړتیا یو مهم کار او د تاریخي، هنري او فرهنگي عصرونو او دورو د بشپړې پېژندنې لپاره وسیله ده. د ډیرو کلونو په اوږدو کې زیات شمیر پوهانو، مؤرخینو او څېړونکیو د هیواد د تاریخ او ثقافت او له دې ثقافت سره د اړوندو سیمو په برخه کې، چې په عمومي ډول په آسیا کې د تمدنونو د تقاطع له مرکز څخه سرچینه اخلي، ډېرې خولې تویې کړي دي او ډېرې پراخې هلې ځلې یې کړي دي؛ خو دا کړاوونه هیڅکله منسجم او سیستماتیک نه وو. اسناد او مدارک یا په عمومي ډول په پرېښودل شوي، یا دا چې د ډېرو کلونو په تېرېدو سره د هېرېدو کندې ته سپارل شوي. له اتلسمې پېړۍ را په دې خوا ډېر شمېر څېړونکیو او پوهانو په هماغه ډول چې د

آسیا په لویه وچه کې اوله هغې جملې څخه په افغانستان کې ډیر مهم علمي او څېړنیز کارونه ترسره کړي دي، د منلو او اهمیت وړ دي، خو د هغوی د کړاوونو نچوړ او نتیجه ډېره لږه خپرېدو ته سپارل شوې، هغه هم په بهرنیو ژبو چې زموږ وګړي پرې په بشپړه توګه خبر نه دي.

لرغونپېژندنه پخپله زموږ په هېواد کې په بشپړه توګه پیغله او ځوانه پوهنه ده چې عامو غوښتنو او اړتیا ووته یې ځواب ورنه کړی شو.

هغه وخت یو ملت د برم او دلرغوني ثقافت څښتن ګڼلای شو، چې د هغه مادي او معنوي ارزښتونه نه یوازي د ځان بلکې د نړیوالو لپاره انځور او معرفي شي. او د ثقافت او کولتور په اړه دا پېژند ګلوي زیاتره لرغوني پاتې شوني او مادي آثار دي، چې ډیر لېري او په پېړیو پیړیو د ځمکې په تل کې نغښتي او پټ دي. او یا دا چې د ځمکو مادي آثار او پېښې د ګوتو په شمیر له طبیعي شرایطو سره سم د یوه ملت د لیدنو کتنو لپاره د لویو فرهنګي میراثونو په ډول پاتې شوي دي، خو ولسونه د هغو له درک څخه ناخبره او په بشپړه توګه پرې نه پوهیږي. د مثال په توګه:

کله چې یو ناني ځواکمن نړیوال فاتح سکندر په (۳۳۰ ق م) کې آسیاته راغی او څلور کاله یې د بین النهرین، ایران، افغانستان او هند په شمال لویدیځ کې تیر کړل، هغه له ځان سره یوازې نوی ثقافت را نه وړ بلکې د ختیځ له ځمکې څخه په تګ سره یې له ځان سره ددې سیمې کولتور او فرهنګ هم یوړ. دې راوړي فرهنګ د ختیځ په ځمکو کې (۲۵۰) کاله دوام و موند او د دې لامل شو چې په فرهنګي او اتنیکي (قومي - نژادي) څرنګوالي او چلند کې بدلون رامنځ ته کړي. هغوي نه یوازې د ترلاس لاندې تولنې په څرګنده بڼه کې بدلون

راوست، بلکې په هنر، ودانیو، ادابو، ژبې، فولکلور، دودونو، عادتونو، نورو ډېرو خویونو کې یې ډېر لوی اغېز رامنځ ته او رواج کړ، چې بیا تر نورو وروستیو ځلورو پېړیو پورې د ختیزو ځمکو واکمنان او چارواکي د هغو له جملې څخه افغانستان هم له هغه څخه بې برخې نه و.

همدارنګه لوی آریایي تمدن، هخامنشي او یوناني تمدن او د کوشانیانو، کیداریانو، یفتلیانو او کابلي رایانو روښانه امپراتورۍ چې یو پر بل پسې له ثقافتي اړخه په ختیځ کې تر ټولو پیاوړې با عظمته دوران و، او ټول یې (۱۶) پېړۍ دوام وموند تراوسه لوی فرهنګي امانتونه خو ډېر ناپېژندویه دي.

دا کتاب چې کولای شي په ځانګړي ډول د افغانستان فرهنګ، تاریخ، ثقافت او هنر د تاریخ په ځینو ختونو کې روښانه کړي، یوازې د کورنیو او بهرنیو لرغونپېژندونکیو د کارو کړ او د احسان پور وړی دی. او یوازینۍ مثبته او کارنده طریقه ده چې زموږ څو زره کلن فرهنګي او تاریخي عظمت د لرغونپېژندنې د نظري او عملي څېړنو او مطالعاتو په وسیله مسلم او مشخص کړي. له همدې امله و پتېیل شوه چې د لرغونپېژندنې د علم په اړه د دې علم پېژندنه او تاریخچه په نړۍ او زموږ په هیواد کې د وروستیو مقدماتو په ډول په پام کې ونیول شي او هڅه وشي چې د دې مهم علم له محتوا څخه په هر اړخیز معیار او مقدار سره عامه ګټه واخیستل شي.

محقق عزیزي

## لومړی څپرکی:

# لرغونپېژندنه څه شی دی؟

لرغونپېژندنه یا ارکیالوجي له دوو یوناني (Greec) کلیمو څخه رغېدلې ده، یعنې ارکایوز (Archaiaus) او لوګوس (Logos) چې لومړی کلیمه د پخواني یا لرغوني په مانا او دویمه د پوهې او خبرتیا مانا لري او په مجموعي ډول په لرغونو شیانو د خبرېدو یا پوهېدو معنی لري.

او په اصطلاح کې هغه علم دی چې له هغو پاتې شونو او لرغونو آثارو سره چې په پخوانیو زمانو کې د انسان له فعالیتونو څخه رامنځ ته شوي دي، سر و کار لري. په بله طریقه داسې ویلای شو:

د تېرې زمانې د کشفیاتو چارې، د ټولنیزو اړیکو او انساتانو د ژوندانه د چاپېریال د ځانګړنو پر بنسټ تر تاریخي لیک او د بشري ټولنو د مدني او تاریخي دورو تر پیل د مخه د مادي آثارو رامنځ ته کول.

په ساده وینا باید څرګنده شي چې لرغونپېژندنه د مادي نړۍ بدلونونه چې په پخوانیو کلونو کې د انساني فعالیتونو له امله رامنځ ته شوي، تر ارزونې لاندې نیسي.

«که څه هم د ځمکې پر مخ د انسان د ژوندانه د تاریخ دقیق اسناد او شواهد په لاس کې نه شته، خو پوهانو تر اوسه د بین النهرین له څنډو څخه تر ټولو پخواني ترلاسه شوي ډبر لیک چې د یوه روایت له مخې په (۵۵۰۰ ق م)

پورې اړه لري، د بشر د تاریخ د مبداء او پیل په توګه منلې او د هغه په نسبت یې د ځمکې پر مخ د انسان ژوند په دوو لویو دورو ویشلی دی:

لومړی - تر تاریخ دمخه دوره: دا دوره د انسان له ژوندانه څخه د لیک د تر ټولو لومړی بیلګې (۵۵۰۰ ق م) تر کشف پورې ده او په قوي اټکل سره میلیونونه کاله نیسي. د بشر د ژوندانه ددې دورې څېړنې په عمومي صورت د لرغونپېژندنې په علم پورې اړه لري چې د نورو مرستندویه علومو په وسیله ترسره کیږي.

دویمه - تر تاریخ راوروسته دوره: چې د لیک د تر ټولو پخوانۍ بیلګې له کشف څخه پیلیږي او تر ننه دوام مومي. ددې دورې څېړنې زیاتره د بشر په لیکلو آثارو ولاړې دي او زیاتره د تاریخ (History) په علم پورې اړه لري. بنایي بشر یوه ورځ د لازیاتو پخوانیو ډبرلیکونو په کشف هم وتوانیږي چې په دې ډول به د بشر د تاریخ د مبداء یا پیل په توګه ومنل شي.»

(د ایډیټر تبصره «فیض محمد نایاب»، د لرغونپېژندنې د مضمون د استاد پروفیسور میله بار د لکچر نوټونو په بنسټ، د فلسفې او اجتماعي علومو ځانګه، کابل پوهنتون، ۱۳۵۵ هـ ش)

په عمومي ډول سره لرغونپېژندنه د انسانانو، ټولنو، پوړیو، قومونو او ملتونو د تېر تاریخ لنډون ګڼلای شو. لرغونپېژندنه د څېړونکیو معلومات د ځمکې د پوړیو تر پېړیو پورې غځوي او لکه چې ویلی شي کله چې جیولوجي پای ته رسیږي، ارکیالوجي (لرغونپېژندنه) پیلیږي.

لرغونپېژندنه عمدتاً له تاریخ، هنر، معمارۍ او نورو ثقافتي او کولتوري علومو او فنونو او عناصرو سره سروکار لري. لرغونپېژندنه په خپلو څېړنو کې

په لومړۍ مرحله کې له اټکل او قیاس څخه ډېر کار اخلي، یعني له بله اړخه لرغونپېژندنه یو هنر دی چې له علمي طریقو څخه پکې کار اخیستل کېږي. لرغونپېژندنه له نورو علومو لکه جیولوجي، بیولوژي، جغرافیې، فزیک، اجتماعي علومو او ثقافتي علم یا اتنوګرافۍ سره کلکې اړیکې لري. او دا مروجه علوم په بشپړ ډول د لرغونپېژندنې کار دی.

لرغونپېژندنه یو نسبتي علم دی چې تیرې زمانې، عصرونه او دورونه د مادي موادو او آثارو په وسیله مطالعه کوي. باید ومنل شي چې لرغونپېژندنه هغه علم دی چې د مادي آثارو د لاس ته راوړنو او کتنو پر بنسټ د زمانې او ځای په پام کې نیولو سره د پخوانیو وګړیو مدنیتونه، کولتورونه او ثقافتونه د پیژندګلوۍ لپاره پلټنې او څېړنې ته وړاندې کوي.

د پوهانو په نظر لرغونپېژندنه د ژوندانه د چاپېریال، د مهمو مادي او فرهنګي پدیدو د رامنځ ته کېدو، عقایدو، آدابو، دودونو، تشکل او د مادي ژوندانه د ډول ډول پرمختګي بهیر له نظره په طبیعت کې انساني ظرفیت ته په پاملرنې سره د انسانانو تر ټولو لومړنی ثقافتي او عقیدوي ژوند مطالعه کوي. او په عمومي توګه ددې پلټنې او څېړنې لپاره څرکونه د ځمکې له تل څخه اخلي او ثقافتي او کولتوري تکامل په ټوله نړۍ او بیلابیلو سیمو کې چې په تاکلې زمانه کې نه دی رامنځ ته شوی، ترڅېړنې لاندې نیسي. د مثال په ډول کیدای شي د پخوانیو آسیایانو، منځني ختیځ ان د اروپایانو په منځ کې د آستر الیایانو او ان د مدیترانې د حوزې د بومي اوسیدونکیو، لکه: یونانیانو، رومیانو، کرتیانو د اوسنۍ ترکیې د څنډو او تر هغو ورهاخوا په افریقایي او د شمالي او سویلي امریکې په هېوادونو او لویې صحرا کې د اوسیدونکیو په

منځ کې د بېلابېلو کولتورونو، سرعت او د مخ لوړي او مخ ځوړي بهير علمي څېړنه او پلټنه د کيندنو او لټونو پر بنسټ د عمل جامه واغوندي.

په بله وينا بايد وويل شي چې:

د لرغونپېژندنې څېړنې يوازې د پخواني تاريخ د بيا راژوندي کېدو لپاره نه دي، بلکې په ځانګړي ډول د ژوندانه د بېلابېلو ډګرونو په ثقافتي پرمختګ او بدلون او بشري تکامل کې زښت ډېر رول لري.

نو کله چې موږ د ثقافت او د بشري تکامل په بهير کې په بېلابېلو ځايونو او زمانو کې د هغه د بدلون په اړه خبرې اترې کوو، په حقيقت کې د زده کړې هغه طريقې او سلوک چې وروستي نسل ته د مخکني نسل انتقالېدونکې ځانګړنې دي او د جينونو په وسيله ورته په ميراث پاتې کېږي ددې ارث له کړو سره يوځای د ثقافت په پايښت او غوړېدنه کې د تحليل او تجزيې اجزا د لرغونپېژندنې علم جوړوي.

په عمومي ډول لرغونپېژندنه په بېلابېلو دورو کې پاتې شونو او موندنو ته په پاملرنې سره د انسان د تېر تاريخ څېړنه ده. په دې مانا چې د ساکښو اړيکې له نورو ساکښانو سره د مدنيتونو او تمدنونو په منځ کې ثقافتي اړيکې او نور موازين په بېلابېلو پړاوونو او دورو کې تر مطالعې لاندې نيسي.

نو له دې امله لرغونپېژندنه د بشري تمدنونو او ثقافتونو لوړتيا او بشپړتيا په يو نه يو ډول مطالعه کوي، کله چې د يوې تاريخي دورې تمدن او يا تر تاريخ دمخه کولتور د لرغونپېژندنې په وسيله د لرغونپېژندنې د مروجو علومو له نظره تر مطالعې او کتنې لاندې نيول کېږي، دا تمدنونه په يو ډول او هم مهاله تر پلټنې، ارزونې او څېړنې لاندې نه نيول کېږي، بلکې د کولتوري او لرغونو پوړيو او قشرونو په پام کې نيولو او د توپيرونو په مقياس کې د ځانګړتياوو او

اړیکو په پام کې نیولو سره ارزول کېږي. په دې معنی چې نه شي کېدای د اروپايي هېوادونو د تیږې لرغونې دوره د آسیايي هېوادونو د تیږې د لرغونې دورې همعصره وي. خو هغه څه چې د لرغونپېژندونکی پام دې کار ته رااړوي، د ورته والي او هم آهنګۍ موجودیت دی. چې آیا دا عصرونه له تاریخي نظره په یوه وخت کې وو؟ او یا دا چې یو په بل پسې په زماني توپیر د ځمکې د کرې په دوو برخو کې تر تاریخ دمخه کولتوري عصر یعنی د تیږې په لرغونې دوره کې منځ ته راغلی دي؟

د دفاعي آلاتو په ځانګړي ډول د توږلې تیږې موجودیت، طبیعتاً سره جلا شوي دی او یا د تهاجمي عواملو په وړاندې، لکه د ښیروونکیو حیواناتو چې انسان ورسره د لرغونې تیږې په عصر کې مخامخ و، او یا د آلاتو له نورو ډولونو څخه ګټه اخیستنه د شکل له مخې یو له بله څخه په بشپړ ډول توپیر لري، خو د جوړښت له مخې سره ورته والی لري. په دې ډول ددې دوو عصرونو ترمنځ واټنیز توپیر د ځمکې د کرې په دوو برخو کې د یوې موضوع د تاکنې او تثبیت لامل دی. که څه هم د ځمکې د کرې په دوو برخو کې ددې دوو عصرونو ترمنځ د وخت توپیر یوه یا څو لسیزې وي.

یعنې د المان د راین سیند د غاړې انسان نیاندرتال (Neandertal) د هېواد د شمال د قره کمر له انسان سره له زماني اړخه توپیر لري، خو د شکل او مضمون له مخې سره ورته دي نو لرغونپېژندنه او د څېړنې اصول یې دا لاره اواروي چې لومړی له ثقافتي او کولتوري اړخه دا عصر مطالعه کړي. بیا په غور او څیرکۍ سره د تکنالوژۍ د تر ټولو عصري وسایلو په مرسته د زماني اړخ په ټاکنه کې نظر څرګند کړي.

نو د لرغونپېژندنې څېړنې له موږ سره یوازې د تاریخ په بیا راژوندي کېدو

کې مرسته نه کوي، بلکې دا شواهد، قرينې او آثار دي چې د دوی پر بنسټ کولتورونه، عصرونه او دورې تاييد شي او د ټاکلي وخت او متغير ځای په ګوته کولو کې بشپړ معلومات او اطلاعات ورکړي. نو د لرغونپېژندنې د څېړنو او مطالعاتو موضوع د «ځای» له پلوه هماغومره اهميت لري چې د «وخت» د څېړنو او مطالعاتو موضوع څرمره ډېر اهميت لري.

لرغونپېژندنه مجرد او مطلق علم نه دی، بلکې له نورو علومو سره يوځای خپل خواړه له اسنادو، مدارکو او شواهدو څخه هم چمتو کوي. د مثال په توګه د افغانستان د کوشانيانو د امپراتورۍ تاريخ له کوشاني لوی امپراتور کنشکا څخه دوه پښته دمخه او څلور پښته تر کنشکا وروسته له اتلسمې پېړۍ څخه تر (۱۹۹۳) کال پورې د لړۍ او دورې پر بنسټ په هماغه بڼه د ټولو کوشان پېژندونکيو او څېړونکيو له خوا منل کېده، خو د بغلان، سمنګان د رباتک د (۲۳) کرښيز ډبرليک په کشف سره درې پښته وو. او سربېره پر دې د امپراتور دين او قانون هم مشخص شو. دا پخپله له شواهدو او مدارکو څخه د لرغونپېژندنې د تغذيې بله وسيله ده. نو دا شواهد په حقيقت کې د تاريخي دورو پاتې شونې دي نه د لرغونپېژندنې تاريخي دوره. د دې شواهدو او مدارکو پر بنسټ ځای او وخت ته په پاملرنې سره تاريخي دوره تثبيت او نوې سنه يې ټاکي او يا تاريخي سنې او نېټه ليک بدلوي.

يعنې لرغونپېژندنه د مادي وسايلو او لوازمو په هراړخيزه او دقيقه مطالعه سره رامنځ ته شوې چې د متحرک او باخبر انسان په وسيله څه د وحشي توب او بدويت او څه په پرمختللې حالت کې د زمانې د پرله پسې دورو له لړۍ څخه په بېلابېلو ځايونو کې غځېږي، او د تکميل په غنا او يا د عصرونو او دورو په بشپړ تابه کې زښته ډېره مرسته کوي.

لرغونپېژندنې د نړۍ په بېلابېلو برخو کې د پرله پسې پلټنو او څېړنو پر بنسټ د ځمکې په پراخه کره کې د تاریخ د علم په ارزونه کې تغییرات راوستي دي، چې بشپړه پایله یې د روښانو مدنیتونو د تاریخي دورو او عصرونو د پراخو مرکزونو موندنه او د انساني ملتونو د قومونو د ټولنیز، اقتصادي، سیاسي او فرهنګي ژوندانه ثرګندویه ده، چې د تاریخ په اوږدو کې له ډول ډول خوځښتونو او پېښو سره اخښل شوې ده.

نو لرغونپېژندنه د یوه نسبي، نه مطلق علم په توګه له مدارکو، شواهدو، آثارو او موندنو سره سروکار لري چې د هغې بنسټیزې سرچینې شمېرل کېږي، د دې علم تر ټولو لوی فکتور د هغه سرچینې دي.

لرغونپېژندنه د یوه مثبت او نسبي علم په توګه یوازې تاریخي دورې نه مطالعه کوي، بلکې تر تاریخ دمخه د انسانانو د فوسیلونو او پاتې شونو هغه څه ته په پاملرنې سره چې د ځمکې د مخ ډول ډول جوړښت د انسان بدني او مغزي تغییرات پخپلو کې او هم له نورو ساکښانو او ځناورانو څخه بېلوي، څېړي. انسان چې د خپلې بقا او ځان ژغورنې لپاره د طبیعت په لمنه کې د اوسیدنې لپاره ډېره هڅه او هاند پیل کړی، لرغونپېژندنه د هغه د عمر په اوږدوالی او قدامت سربېره چې دې انسان د خپل ژوندانه د دوام په لاره کې یې د ښه ژوندانه لپاره د وسایلو او پوهې هڅه کړې، هماغه هڅې دي چې د انسان د تمدن او فرهنګ تر تاریخ لاندې مطالعه کېږي. چې همدا انسان په پخوانۍ زمانه کې توانېدلی چې د خپل لیرسنجي عقل په ملګرتیا خپل طبیعي ژوند چې د ډېرو پېښو تر اغېز لاندې و، په تصنعي ژوندانه بدل کړي او ځان ته په زړه پورې چاپېریال ومومي.

لرغونپېژندنه لکه څنګه چې د انسان د ژوندانه لومړي څرکونه په وسايلو، آلاتو، د عقيدې په طرز طريقه، زمانې او د هغه په ټولنيز چلند سره له پيله تر پای پورې تر غور او څېړنې لاندې نيسي د هغه د ټولنيزو اړيکو پرمختګ، له چاپېريال سره سمون او ناسمون د سمڅو له مېشتېدنې څخه د مدني تکامل تر وروستيو معيارونو پورې تر څېړنې لاندې نيسي. د علماوو دا څېړنې او مطالعات د لرغونپېژندنې د څېړنو او پلټنو په اسلوب پورې اړه لري. لرغونپېژندنې د لومړي ځل لپاره د انسانانو ژوند له ځنګلونو او طبيعي سمڅو څخه تر وسايلو او آلاتو پورې تقسيم بندي کړ. او د زاړه يا لرغونپيژندنې اصطلاح يې د انسان له لومړني ژوندانه، د عقلونو، د بدني جوړښت له طرز او د هغه له فعاليت څخه پيل کړه او د ناحلو قضيو د منطقي پيوند لپاره يې د انسان ډول کېدونکې بهير په څېړنيزو، علمي او منطقي مېتودونو او طريقو سره تقسيم بندي کړ.

لرغونپېژندنې د انساني ژوند د ارزونې پړاوونه (تکامل، بقا او له منځه تګ) ومانه. يعنې انسانانو چې د چاپېريال د پېښو او عواملو په وړاندې په ناتوړلې تيږه جنګ کاوه، نو هغه ته يې د لرغونې تيږې انسان (Paleo li thic) ووايه او کله چې له مصنوعي يا توږل شوې تيږې سره د پېښو په دې شخړه کې مخامخ شول، نو هغه ته يې د نوې تيږې انسان يا (Neolithic) نوم ورکړ او ددې دورې د بشپړېدو منځ يې د منځنۍ تيږې د دورې (Mego li thic) په نامه ونوماوه او کله چې انسان د زمانې په اوږدو يا پرله پسې زمانو کې پورتنۍ پوړۍ ووهلې او د هغه مغزي تکامل د عقلونو د لوړتيا او د ډېرښت پړاو ته ورسېد او کانونه، په ځانګړي ډول مس،

قلعي او اوسپنه يې لاس ته راوړل، نو هغه يې د فلزاتو د پړاو په انسان يا (Aged Metaux) ونوماوه.

تر دې وروسته لرغونپېژندنې خپله لاره پراخه کړه، له تاريخ سره يې موازي خپله لاره ووهله او اعلان يې وکړ چې له ليک لوست پرته د ځمکې په کره کې بل تاريخي دوران، بې ژبې دوران خو غځېدونکی او مهم دوران هم شته چې تر اوسه ترې بشر خبر نه و، يعنې د تکامل، بقا او له منځه تلنې دوران په بنسټيز ډول د پخوانيو دورونو د پرمختګ او تکامل لويه برخه د تاريخ له دوران سره مساوي کړه او د هغې بله درجه او اهميت يې ومانه.

د يوه بل نظر له مخې کولای شو لرغونپېژندنه په عمومي توګه تر ټولو زياته په مختلفو برخو کې د مسئلې د اصل په توګه ومنو. د تر تاريخ دمخه دورو په اړه بشپړ معلومات او اطلاعات د علمي پلټنو او فرهنګ پېژندنې (Ethonographie) له لارې تر لاسه کېدای شي. ومو ويل چې لرغونپېژندنه د انسان تېر تاريخ د پاتې شونو (Monuments) يا مادي آثارو په وسيله انځوروي. ددې څېړنيز اسلوب موخه دا ده چې دا مادي آثار وپلټي، طبقه بندي يې کړي او په پرله پسې زمانو کې يې باخبر انسان ته وروپېژني. دا مادي آثار هماغه د کار آلات، وسله، د کور سامان، د کورونو پاتې شوني، هنري لاس ته راوړنې، سپېڅلي مذهبي ځېزونه، د لرغونو او پخوانيو ټولنو مرکزونه، مړيستونونه (هديرې) د ښارونو قصابخانې کشف او تر غور او مطالعې لاندې نيسي. د لرغونپېژندنې دا تحرک تر تاريخ دمخه دورې او په تاريخي دورې پورې اړوند کېدای شي.

لرغونپېژندنه هم د نورو علومو، لکه جيولوژی غوندې د ځمکې پخوانی

پوړۍ، قشرونه او طبقې، چې په هغو کې په هره مرحله کې د انساني ژوندانه پاتې شونې له فعالیتونو سره د زمانې په تېرېدو منځ ته راغلي، د پخوانیو پوړیو تر عنوان لاندې چې له لس گونو زیاتې دي، هم تر مطالعې او څېړنې لاندې نیسي، او د امکان تر بریده له مدرنو وسایلو او له عصري فزیکي کیمیاوي ټکنالوژۍ او نورو تجربو څخه گټه اخلي. ځو چې د زمانې لرغونتیا یا قدامت او د ځانگړتیاوو څرنگوالی یې د مادي موادو له مخې ښه تر مشخص شي. له دغې جملې څخه څېړونکي کولای شي د هډوکو ټوټې، ایرې، چونه یې مواد او کاربن چې د انسان په آهکي جوړښت او یا د اوسېدنې په مادي چاپېریال کې پټ دي، د عصري او مدرنو دستگاوو په وسیله تر تحلیل او تجزیې لاندې ونیسي او پرې تېر شوی وخت یې وارزوي. ځکه د پخوانیو انسانانو د هډوکو د ټوټو په راپاتې شویو موادو کې چې د زرگونو کلونو په اوږدو کې کوم بدلونونه رامنځ ته شوي د کاربن (۱٤) د یوې اندازې راډیو اکتیف ایزوتوپ په وسیلې تر تحلیل او تجزیې لاندې نیول کېږي.

خو باید ومنل شي چې لرغونپېژندنې تر (۱۷ م) مې پیړۍ وروسته او د اتلسمې پېړۍ په منځ کې د تر تاریخ د مخه دوران پر مطالعې او پلټنې سربېره د نړۍ لویې او پراخې واکمنۍ او امپراتورۍ او لوی فرهنگي او ثقافتي عصرونه تر ژورې مطالعې او څېړنې لاندې نېول کېږي او ډېره اندازه اسطورې او افسانې یې په لویو تاریخي حقیقتونو بدلوي. ددې مطالعاتو او پلټنو عوامل پټ اسناد او فرهنگونه وو، چې د هغو په اسلوب لرغونپوهان د هغو د متن او محتوا د موازینو او مطالبو په مطالعه او ژوره کتنه بوخت شول.

مثلاً لرغونپېژندونکیو د اتیک (Atic) دورې د تاریخپوهانو لکه

هرودوټ (Herodote) او سترابون (Strabon)، تاسیټ (Tacite)، تروگوس پومپایوس (Trogos pompaius)، آرین (Arian) او نورو ارمیني، رومي، یوناني، چینایي او نورو تاریخپوهانو له اسنادو او یادښتونو څخه یې ګټه واخیسته او خپل څېړنیز کار یې پیل کړ. نو ویلای شو چې لرغونپېژندنه له هغو لیکلو مدارکو څخه په ګټې اخیستنې تر پنځمې مخزېږدې پیړۍ را په دې خوا څېړونکیو او تاریخپوهانو ته په لاس ورغلي، لرغونپېژندنه ددې متونو د دوو اطلاعاتو پر بنسټ خپل عملي کار پیلوي.

نو له دې امله کولای شو په دې اړه ډېر مثالونه وړاندې کړو، خو یو چې په اړونده برخه کې یې مطالب وړاندې کړو، نو په عمومي ډول باید په دې برخه کې څرګنده شي:

لرغونپېژندنه هغه علم دی چې پخپله محتوا کې له نورو علومو سره اړیکې لري او د تاریخي او تر تاریخ دمخه دوران د انسانانو مادي او معنوي فعالیتونه د موندل شویو اسنادو او مدارکو په لیدلو سره تر څېړنې او پلټنې لاندې نیسي او عمدتاً په عملي کار او اوږدو له صبره ډکو څېړنو سره لوی اطلاعات او تفسیرونه څه له تاریخي لیکل شوي اړخه او څه له څېړنیز نوي او تازه اړخه نوي پیدا شوي معلومات له تاریخ سره یوځای کوي او د تاریخي معلوماتو پانګه زیاتوي.

نو د لرغونپېژندنې د کار پیل د وخت په تېرېدو سره پراخ شو او ددې علم په پراخوالي او ځانګړیو کې لویو پوهانو ډېر کړاوونه زغملي او نه ستړي کېدونکې هلې ځلې یې کړي دي.

## د لرغونپېژندنې تاريخچه:

مخکې له دې چې د نوې او علمي لرغونپېژندنې د تاريخ او پيدا ېښت په اړه مطالب وړاندې کړو، ښه به وي چې د دې بنسټيزې او عمده برخې په اړه چې د تاريخ د مرستندويې او بشپړوونکې په نامه هم نومول شوې ده، د زياتو معلوماتو لپاره رڼا واچول شي.

د خوځندو او پلټوونکيو انسانانو د انکشافاتو او نوي ژوندانه په عصر کې د (۱۵م) مې پېړۍ په وروستيو او د (۱٦م) مې پيړۍ په لومړيو کې هغه مهال چې کريستوف کولومبوس سيلاني او نړۍ گرځيدونکي نوې نړۍ ته ورسېد او مجيلان يا گليلانو د نړۍ شاوخوا د بېړۍ په وسيله ووهله، د هغوی په وسيله د انسان د سابقې په اړه کشفيات راغونډ او د بېلابېلو مدنيتونو او کولتورونو په ځانگړي ډول د پخواني يونان او روم په اړه يې معلومات راغونډ کړل.

سيرياکوس يا سيراکس (Cyriacus) (۱٤٤۹م) چې ايتالوي پلټوونکی و، د مخکښانو له ډلې څخه يې شميرلی شو. نوموړي د منځني ختيځ له سيمې په ځانگړي ډول د شمالي افريقې له لارو تېر شو او په مصر کې يې پراخې مطالعې وکړې. بيا يونان ته ولاړ. سيرياکوس د يونان مهم او مشهور معبدونه وليدل او خپل دا معلومات يې د شمالي افريقې او جنوبي اروپا او مديترانه يي سيمو څخه لاس په لاس د لرغونو سيمو او آثارو د نورو مينه والو ذهنونو ته ورسول. هغه د يونان د پخوانی يعنی د څلورمې قبل الميلاد پېړۍ د مؤرخ (هرودټ) چې د تاريخ په پلار هم مشهور دی، تر ټولو لوی توضيح کوونکی اثر لاس ته راوړ.

دې نسخې او د پښتواني يونان نورو ډېرو تاريخي مشهورو خطي نسخو د واکمنو، شهزادګانو او رومي لوړ پوړو وګړيو کليکسونو ته لاره ومونده. په همدې ترتيب کله چې په (۱٤٥۳م) کې د قسطنطنيې ښار د تورکانو په لاس فتح شو، يو شمير يوناني علماوو او پوهانو ايتاليا ته سفرونه وکړل او مهم اسناد او غوره لرغوني آثار يې له ځان سره يوړل. ددې پېښې په پام کې نيولو سره روميانو او د مديترانې د څنډو وګړيو له پښتوانې نړۍ سره د فرهنګ او ثقافت له نظره پراخه لېوالتيا وښودله، په ځانګړي ډول د ګوتيانو او بربريانو د بريدونو او د يونان د اسطورو د فرهنګ يادګارونو، د افسانوي لوحو او د يوناني اتلانو او خدايانو وياړونو، ددې څنډو د ټولنو په چلند کې مهمې انګېزې خپرې کړې. نو له دې امله په (۱٦م) او (۱۷م) مه پېړۍ کې د پښتوانيو او لرغونو آثارو د مينه والو او لېوالو شمېر ورځ په ورځ زيات شو او د خدايانو او الهه‌و د مجسمو او ځېرو راغونډول. د رومي پانګوالو د وياړونو او ذوق وسيله وګرځېده. او ورو ورو د هغو په کورونو او ودانيو کې د کلکسيونو په شکل بدل شول. تا به ويل چې د مرمرينو او نورو تيږو د ښکلو هنرونو قيمتي ګالري جوړه شوې ده. لکه چې په (۱٥۸٥-۱٦٤٦م) مو کلونو کې د انندال (Anundel) په نامه کس (۳۷) بشپړې او (۱۲۸) نيمه تنه يې مجسمې له ډبرينو ګلدارو او توږل شويو تابوتونو سره راغونډې کړې.

د ځينو پوهانو په نظر د داسې کلاسيکو آثارو د راغونډولو ګونګوسې ټولې نړۍ ته خپرې شوې او ددې برخې پوهان او مينه وال په کار بوخت شول، سربېره پر دې چې دا آثار يې له معبدونو او کورونو څخه راغونډ کړل په ډېرو ځايونو کې يې اوږدو پلټنو او کيندنو ته لاس واچاوه، چې په هغه مهال يې د

ننني لرغونپېژندنې اصول او موازين نه درلودل او عموماً لکه د نن په څېر د هغوی موخه د لرغونو آثارو ترلاسه کول وو.

د څېړونکيو او پوهانو په نظر د تر تاريخ د مخه عصرونو د منځ ته راتګ او په ځانګړي ډول د پخوانۍ تيږې د لومړني انسان موجوديت د چارلس داروين د مشهور اثر له چاپ سره سم و، چې د (ډولونو د سرچينې) په موضوع چې د انسان د تکامل تيوري يې د طبيعي تعيين او ټاکنې له لارې منعکسوله او دا کال (١٨٥٩م) د نولسمې پېړۍ منځ دی. د لومړي ځل لپاره په (١٨٥٦م) کال کې د آلمان د راين سيند له څنډو څخه د نياندرتال (Neandertal) د لومړنۍ جمجمې په کشف سره د لرغونپېژندنې د پيل نېټې ټاکل معيار نيول کېږي. ځينې څېړونکي تر تاريخ د مخه دورو طبقه بندي او يا په ځانګړي ډول د لرغونې تيږې دوره چې د تکامل په اصالت يا (Evolutionists) يې عقيده درلوده د منلو وړ او د هغه د ثقافتي او کولتوري تکامل مراحل يې په څلورو مشخصو برخو ويشلي دي.

تر هغه وروسته متقاعد جنرال پټ ريورس (Pitt Rivers) چې د هيروډټ غوندې د عملي کيندلو پلار ګڼل شوی دی، لرغونپېژندنه تر ټاکلو موازينو او ضوابطو لاندې رامنځ ته کړه. هغه په عمومي ډول لرغونې پردې او طبقې تر مطالعې لاندې ونيوې او په (١٩٢٧م) کال کې په عمومي ډول سره په اروپايي نړۍ کې له آسيايي هېوادو پرته د نيو مکسيکو فولبوم ته نږدې يې د آلاتو او هډوکو د ټوټو او پارچو په کشف سره لرغونپېژندنه متيقينه کړه څو چې عصرونه، دورې او کولتورونه يې د طبقو او پردو يانې ستراتيګرافي په بنسټ مطالعه کړل او د يوې دورې يو کولتور يې د وروستي او مخکې کولتور سره

مطالعه کړي. دلته باید ومنل شي چې تر (پټ ريوس) وروسته د لرغونپېژندنې پيل او د هغې نسبي علم په هر هېواد کې په عام او نړېوال ډول رواج ومونداو لوديزوال او امريکايي پوهاندان، د ډبرو ليکونو تر موندنې او لوستنې او د معبدونو او هديرو تر مطالعې وروسته د مديترانې، مرکزي اروپا، کوچنۍ آسيا او آسيايي هېوادونو په لور وځغاستل.

مثلاً تر ټولو ښه امانت چې د لرغونپېژندنې د کيندنو او مطالعاتو سرمشق شو د مصري هيروغليف يا پکتوګراف (Pictographie) ډبرليکونو لوستنه وه چې د خطونو پرځای د الوتونکيو له بېلابېلو انځورونو او نښو څخه ګټه اخيستل کېده. د هيروغليف ډبرليک په (۱۷۹۸م) کې هغه مهال چې ناپليون د (۳۸۰۰۰) کسانو په ملګرتيا د بحر له لارې مصر ته ننووت، يو شمېر پوهان ورسره ملګري وو او په (۱۷۷۸-۱۸۶۷م) کال کې د نابغه ژبپوهاند شامليون په وسيله د هيروغليف ډبرليک ولوستل شو او تر دې وروسته نه يوازې په ختيځ کې د پلټنو پيلامه وه بلکې د آسيايي مدنيت د بېلابېلو دورو د مطالعاتو پيلامه شمېرل کېږي. داسې چې د شلمې پېړۍ په منځنيو کلونو کې په انګلستان کې د مصر د لرغونو آثارو د مطالعې لپاره يو ځانګړې ښوونځی پرانيستل شو. او يو شمېر کسانو د ليک لوست تر تاريخ دمخه دورې د مطالعې لپاره په (۱۸۵۷م) کال کې د يوه لغت په توګه لکه (تر تاريخ دمخه) چې د لومړي ځل لپاره د جان لبورګ په واسطه ونومول شو او په (۱۸۶۵م) کال کې تر دې سرليک لاندې کتاب خپور شو چې نور پوهان يې دې کار ته ځير کړل او په (۱۸۷۹م) کې په التاميرا کې يوه سمڅ کشف شوه چې په منځ کې يې د لرغونې تيږې د دورې رسمونه او انځورونه وو. او ددې لړۍ

وروستي مطالعات د دې لامل وګرځېد چې د موندنو او نورو آثارو په بنسټ د نوې تيږې د دورې يا (Neoli thic) او لرغونې تيږې او په پای کې منځنۍ دورې او فلزاتو په ځانګړي کولو کې، تر هغه وروسته نه يوازې په اروپايي هيوادونو کې، بلکې د ختيځ په خاوره په ځانګړي ډول د سند په حوزه، زموږ د هېواد په شمال، د مرکزي آسيا په هېوادونو، د آسيا په سويل ختيځ، د فلات، ايران او بين النهرين په ببلابېلو سيمو کې خپله لاره ووهله.

د ځينو څېړونکيو په نظر د نوې لرغونپېژندنې د پيل کال (۱۹۱۸م) پېژندل شوی دی. اصولاً د هغو څېړنو په بنسټ چې شوې دي لرغونپېژندنه په اصولي ډول تر (۱۹۵۰م) کال وروسته د نوې او علمي لرغونپېژندنې په توګه رامنځ ته شوه چې له پخوانۍ لرغونپېژندنې سره په ټولو موازينو کې بشپړ توپير لري. يعنې هغه مهم انکشاف چې په وروستيو کلونو کې د ځمکې د کرې په ختيزو او لوديزو نيمو وچو کې پېښ شوی دی، په ساحه (Fild-work) کې د بين العلوم څېړنيز ميتود وده ده.

همدا رنګه لومړنې پلټونکي او لرغونپېژندونکي په هر اړخيز ډول چې په علمي اصولو او پراخه پلټنو برابر وو او د جيولوجي د څلورمې دورې (Quarter maire) د پيل د انسانانو د آلاتو او ژونديو موجوداتو د بقايا و د کشف لامل شول، هماغه په (۱۸۳۰م) کال کې په انګلستان کې مک اينری (MC Enery) او په (۱۸٤۰م) کال کې په فرانسې کې بوچت دوپرت (Bouchet) پېژندل شوي، چې د لرغونپېژندنې او انترپولوجۍ يا بشر پېژندنې بنسټ يې کېښود.

نو تر (۱۹) پېړۍ وروسته لرغونپېژندونکيو او څېړونکيو د بشري

ژوندانه ببلابېل ډگرونه د لومړنيو انسانانو يعنې د نياندرتال له دوران څخه تر عاقلو (Homosapiens) انسانانو پورې په عمومي ډول د لاندنيو چارو علمي او څېړنيز فعاليتونه د کرونولوجي پر بنسټ په لرغونپېژندنې پورې د اړوندو مسايلو د سمو راژوندي کولو او ترتيبولو په برخه کې ترسره کړي دي.

۱ - لرغونپېژندونکيو او فرهنگ پېژندونکيو په ( ۲۰ ) مه پيړۍ کې د لومړنيو ټولنو په ځانگړي ډول تر تاريخ دمخه د ورو يا (Protohistory) د تاريخ پـه اړه ډېر اسناد او شواهد لاس ته راوړل او دا لاره يې اواره کړه چې د خپلو تېرو ولسونو د عقايدو او فکرونو له اصولو څخه چې مخکې يې په دې اړه هيڅ معلومات نه درلود ، د ابهام او اتکل پرده ليرې او راڅرگند يې کړي. لرغونپېژندونکي بريالي شول چې په تر پام لاندې ځايونو کې د هر اړخيزو هلو ځلو او پرله پسې پلټنو په وسيله د لرغونې تيږې د زمانې د ثقافت پرمختگ او عظمت انځور کړي، له دې مخکښانو څخه يو هماغه (ج - کلارک ) دی چې د اروپايانو د نوې تيږې يا (Neoli thic) زمانې ژوند يې په گوته کړ.

۲ - د لرغونو سيمو د پخوانيو پوړيو د لرغونپېژندنې په دې بنسټيزو څېړنيزو مطالعاتو کې له نوښتگرانو څخه هماغه المانی پوه او منگهم (O.Menghim) دی.

۳ - و. گوروتسوف (V. Gorotsov) او ټ. پاسک (T. Passek) د تر تاريخ دمخه ببلابېلو دورو د تکامل او بدلونونو بهيرونه د ژوندانه د ببلابېلو نظريو له مخې، رامنځ ته او د سيمو ترمنځ ثقافتي اړيکې يې د زرگونو کلونو په اوږدو کې مطالعه او وارزولې.

۴ - يو بل پوه د تر تاريخ دمخه انسان د څېړې لرغونپېژندنه جمجمې

ته په پاملرنې سره لاس ته راوړې او په گوته کړې او په لس گونو جمجمې يې د ځبرې د اناتومۍ په ليدلو داسې چمتو کړې چې د تر تاريخ دمخه لومړني انسان بنيه يې وښوده.

٥ - لومړنی کس چې په مصر کې يې کيدنې وکړې او ډير آثار يې تر لاسه کړل او د هغو يو شمير يې د فرانسې لوور (Loure) موزيم ته ولېږدول اگوست مولي (Agust-Mauelle) و.

٦ - تامسن يوازينی کس و چې لرغونپېژندنه يې يوازې د ځمکې په زړه کې پلټنه او کيندنه نه گڼله بلکې معتقد و چې آثار، مواد، چاپيريال او شاوخوا او خبروونکي عوامل د هماغې سيمې له وضعې څخه بشر خبروي چې تر څېړنې او پلټنې لاندې نيول کيږي.

## د لرغونپېژندنې د ميتود لومړی پړاو (Methodical Archeaologie):

مخکې له دې چې د لرغونپېژندنې د ميتود په اړه لازمه شرحه وړاندې شي، بايد يادونه وشي چې د لرغونپېژندنې ميتود د کيندنو يا (Excuvation) له اصولو او قواعدو سره توپير لري او دا دواړه موضوعگانې بايد سره يوځای نه شي.

د لرغونپېژندنې ميتود د لرغونې سيمې د مدارکو او شواهدو د موندنې لپاره دی. يعنې په لومړي پړاو کې خپل کار د تېر ثقافت او فرهنگ د مادي آثارو د لاس ته راوړنې لپاره نه، بلکې د اسنادو د موندنې لپاره کوي.

په دې ځای کې اصولاً د لرغونپېژندونکي لپاره تر ساحوي کار (Field-work) دمخه د هغې سيمې په اړه چې غواړي کار پرې وکړي د ليکلو

منابعو څېړنه او تدقيق ډېر ارزښتمن او ګټور وي. د موضوع د ښې روښانتيا او اثبات لپاره داسې څرګندونه کولای شو:

مثلاً د ستړابون او نورو ډېرو مؤرخينو په پخوانيو اسنادو کې د پخوانۍ آريانا، فراداتا او په همدې ډول داراکوزيه او د رنګانيه د ځمکو په منځ کې تر (٣٣٠ ق م) وروسته د مقدوني سکندر د سفرونو په اړه پراخې ليکنې شوې دي. او لکه چې وايي شمال ته د حرکت پر وخت يې د پروفتازيا (Proftazia) له سکندريې سره د آمو يا (Oxus) سکندريه جوړه کړه او په (٣٠٥ ق م) کې تر مقدوني سکندر وروسته نېکاتور سلوکوس د باختر په حوزه کې د خپل سري پوځي او ثقافي ځواک ښتن شو.

لرغونپېژندنه ددې دوو سکندريو د ټاکلو لپاره بايد تر پلټنو او کيندنو د مخه پورتنی متن په ځير سره وارزوي، بريد پولې او اړوندې ځمکې د پړاوونو له مخې په پام کې ونيسي، لکه:

١- د پخوانيو مصطلحاتو، ژبپوهنې او فونوټيک (غږ پوهنې) له مخې د نومونو سمون، څو چې هغه سيمه چې له جغرافيايی اړخه سره سمون خوري، د لرغونپېژندونکي له خوا په ګوته شي.

٢- د سيمې يا ځای جغرافيايي بريدپولې د نورو څو متنونو سره په پرتليز ډول ارزيابی شي.

٣- د په پام کې ځای د نومونو د شکل د تغييراتو لړۍ، د ورته والي او څرنګوالي د قراينو په پام کې نيولو سره.

٤- د نوم او تاريخی لرغونتيا له مخې د په پام کې سيمې او ساحې د شفاهي ادبياتو د محتوياتو راغونډول او د سره ورته عناصرو تحليل.

۵- د سیمې او د هغې د نومونو په اړه د هغو اوسیدونکیو او مشرانو نظریات او ویناوې چې له څو نسلو راهیسې معلومات وړاندې کړی شي، په پام کې نیول کېږي.

۶- د یوې سکندریې د ځانګړنو په اړه شواهد او مدارک، یا په سیمه کې د معمارۍ او ودانۍ طرز او یا د غورځېدنو (Topography) له مخې.

۷- د مؤرخینو یادښتونه او لیکنې لوستل او د تاریخي متنونو مطالعه.

۸- د پلټنې سیمې او د نامه او جوړښت له مخې نورو ورته سیمو ته ژوره پاملرنه.

۹- د هغو پړاوونو د څېړنې او تدقیق لپاره د معلوماتو د آرشیف برابرول چې لرغونپېژندنې د هغو په رڼا کې هلې ځلې کړې دي.




۱۰- د ادبیاتو، فرهنګ، ځانګړتیاو او د ځای شونو مطالعه.

## د لرغونپېژندنې د مېتود دویم پړاو:

په دې پړاو کې لرغونپېژندونکی د پخوانیو یعنی لومړنیو پړاوو په پام کې نیولو سره په پام کې سیمه کې خپل علمي او عملي کار پیلوي په دې معنی چې:

۱- سیمه د توپوګرافي او د غورځېدنې د طریقې له مخې د یوې سکندریې د جوړښت او د معمارۍ طرز ته ځواب ورېلای شي.

۲- د اړوندې ځمکې سطحه د پاتې شونو لکه سیرامیک (کوډړو) او نورو شیانو له پلوه، چې په یوه یوناني مدنیت دلالت وکړي تر مطالعې لاندې نیول کېږي.

۳- د خاورې ډول، د رنګ توپیرونه او ترکیب لرغونپېژندونکی موخې ته رسولای شي.

٤- د هغو څیزونو مطالعه چې د ځمکې پرمخ پراته دي، لکه بنایي د ستنو برغولي، ډبرینې پیندۍ په ځانګړي ډول مرمرینې، د خاورینو لوښو یوه برخه پاتې شوني لکه لیکتوس (Lykthus) یا امپوره (Amphora) او نور چې ټول کولای شي په سیمه کې د یوه کلاسیک یوناني مدنیت د موجودیت شاهدي ورکړي.

٥- د ځینو ټوټو (Fragmental) او بشپړو او نابشپړو لیکنو او ډبر لیکونو لاس ته راوړل چې د یوناني دورې د یوه پخواني کولتور شاهدي ورکوي.

٦- د دورو په پام کې نیولو سره په منل شویو اندازو لومړنۍ کیندنې (سانداژ Sondage) دوه متره پلنې لس متره اوږدې او (X) ژورې.

٧- د لاس ته راغلیو قشرونو مطالعه او د ځمکې پرمخ د کشف شویو څیزونو طبقه بندي.

٨- د کوم څیز یا ودانۍ د کشف په صورت کې نوموړې په پام کې دوره تاکل کیږي.

٩- د ترلاسه شویو موادو، لکه سکرو، ایرو، ورستو شویو لرګو، کودړو، فوسیلونو او د هډوکو د ټوټو تحلیل او تجزیه د کاربن (B 14) په وسیله چې کاشف یې امریکایی پوه لي بي (Le bee) دی او همدا رنګه د تحلیلي طریقې کرستالوګراف په وسیله د سیمې د لرغونتیا په ټاکنه کې پراخه مرسته کېدای شي.

١٠- د مادي موادو آثارو او شیانو پرتلنه له نورو لاس ته راغلیو او کشف شویو آثارو سره، د راغونډولو په زیرمو لکه موزیمونو او اتنوګرافیکو سیمو او حوزو کې.

## د کيندنو او يا د سروې په پړاوونو کې د آثارو د کشف پر مهال د لرغونپېژندنې وروستۍ دندې:

کله چې لرغونپېژندنه خپل ټول څېړنيز پړاوونه د اوسنيو منل شويو موازينو سره سم د سيمې او يا آثارو په اړه ووهي، نو بيا په دوو فکتورونو خپل عملي کار پيلوي:

لومړی: پرتليز يا مقايسوي فکتور: له ټولو همدوره آثارو د ورته والي، تدقيق او همغږۍ پرتلنه.

دويم: شننيز يا تحليلي فکتور: ددې څرنگوالي په اړه مطالعه او څېړنه چې: آيا:

۱- آثار په سياقي (Contextual) بڼه دي چې مونږ هغه په تطبيقي طريقه د لومړي فکتور مربوط گڼو.

۲- آثار د لاسي صنعت (Functional) په وسيله سم شوي دي.

۳- آثار عام، رواجي او سلوکي (Behavinral) دي، په دقيق او هراړخيزه ډول.

٤- آثار کلتوري او عرفي (Traditional object) مخکې ځي.

نو له دې امله دا دوه فکتورونه او څلور مادې د لرغونپېژندنې کار په ځان کې رانغاړي.

## کيندنې يا پلټنې د لرغونپيژندنې د فعاليتونو عمومي زړی:

هغه څه چې مخکې پرې د لومړنيو کيندنو په برخه کې د بېلابېلو دورو په اړه خبرې وشوې په حقيقت کې د لرغونپېژندنې اسکليټ او بنسټيز ساختمان جوړوي.

هغه پلټنې چې د نولسمې پېړۍ په منځ کې د اروپا ، آسیا ، افریقا او د آسیا په سویل لودیځ وچو کې ترسره شوې ددې لامل شوې چې تاریخي لغت یو بل پیوند ومومي او دا لغت هماغه تر تاریخ دمخه دورې او عصرونه وو چې لرغونپېژندونکیو په څلورو بنسټیزو دورو ویشلی دي:

تر تاریخ دمخه دوره ، د لرغونې تیږې دوره ، د منځنۍ تیږې دوره او د لرغونې تیږې وروستۍ یا د فلزاتو دوره چې د تیږو دا هره یوه دوره یې په فرعي دورو ویشلې دی. همدا رنګه لرغونپوهانو د فلزاتو دوره هم په درې نورو (دمسو ، مفرغو او اوسپنې) په دورو ویشلي دي.

د تېرې پېړۍ د پنځمې لسیزې په پیل کې ډنمارکي لرغونپېژندونکي (CH-Thomsen) د موندل شویو آثارو په طبقه بندۍ کې له بنسټیزو موادو سره سم ، چې د آلاتو د جوړولو لپاره کارېده ددرې ګونو عصرونو یا (Ages) تیوري مطرح کړه. او هغه یوازې د تیږې عصر (Paleolithic) د مصر د ګډو فلزاتو (مفرغ) او د اوسپنې د عصر وړاندیز وکړ او دا تقسیم بندی د تر تاریخ دمخه مرحلو او عصرونو په ټاکلو کې د یوه اصل په توګه ومنل شوه. وروسته یې ددې عصرونو هر یو یې په خپل وار سره په دورو وویشه یعنې د لرغونې تیږې دوره ، د منځنۍ تیږې او د نوې تیږې دوره. او له دې دورو څخه یې هره یوه د مادي آثارو د کشف د ځای په نامه لکه د شلهئن (Chelleen) د آشلین (Achenleen) او موستېرین (Mausterien) د آثارو د دورو په نومونو نومولې ، چې دا دورې د نړۍ د ټولو لرغونپېژندونکیو له خوا ومنل شوې. په داسې حال کې چې د مورګان (Morgan) په نامه یوه بل پوه په (۱۸۸۰) کال کې په خپل کتاب (پخوانۍ ټولنه) کې دا یادې شوې دورې په دوو برخو ویشي.

یوه د وحشي توب (Sauragene) بله د بدویت (Barbene) دوره. لومړۍ دوره د غشي او لیندۍ په جوړولو او اختراع سره پای ته رسېدلې بولي او دویمې دورې پیل د خاورینو لوښو د جوړولو نوې پیلامه ګڼي چې په دې دوره کې ځاروي اهلي کولو او روزلو او بزګرۍ وده کړې وه.

نو ددې پلټنو او څېړنو زېږنده ددې دورې په برخه کې د انسان په وجود کې څرګنده ده. مثلاً لرغونپېژندنه د فوسیلونو له پاتې شونو سره مخامخ شوه چې تر تاریخ د مخه لومړني انسان پورې یې اړه درلوده او په لاندې ډول یې د هغو یادونه کړې ده:

۱- د لومړي ځل لپاره یې فوسیل ومونداو د پتیک انتروپ (Pithec anthrope) نوم یې پرې کېښود چې په (۱۸۹۱-۱۸۹٤م) کلونو کې یې د جاوا له هېواد څخه لاس ته راوړ.

۲- دویم ځل په (۱۹۲۵م) کال کې د چین د لرغونپېژندونکیو له جملې څخه اون چونګ (On-chung) د پکن ښار په شاوخوا کې د سوکوتین له سمځې څخه فوسیلونه تر لاسه کړل چې د انسان (سین انتروپ Sin anthrope) په نامه یادشول.

۳- په (۱۹۵٤م) کې فرانسوي لرغونپېژندونکیو الجزایر ته نژدې د تر تاریخ دمخه انسان د فوسیل یوه بله پاتې شوې بېلګه وموندله چې هغه یې د التانتروپ (Altanthrope) په نامه یاد کړ.

٤- هایدلبیرګ ته نژدې یې د بل انسان فوسیلونه وکتل چې هغه یې د هایدلبیرګ (Heidelberg) فوسیلونو په نامه ونومول.

۵- په (۱۸۵٦م) کال کې یې د نیاندرتال په نامه دورې کې د آلمان د

دوسلداف په شاوخوا کې فوسیلونه کشف کړل چې په تر تاریخ دمخه انسان پورې یې اړه درلوده او هغه یې د نیاندرتال انسان په نامه ونوماوه.

٦- په (۱۸۵٤-۱۸۷۷م) کال کې په فرانسه کې لرغونپېژندونکیو د سمځ مېشتي انسان فوسیلونه او هډوکي کشف کړل او په هغو یې د کرومانون (Cro-Manon) انسان نوم کېښود او د هغو څېړنو پر بنسټ چې وشوې کرومانون به په لاره کړوپ روان و او خپل مړي به یې په تشریفاتي او ډله ییزه توګه خاورو ته سپارل.

۷- په (۱۹۲۹م) کال کې په افریقا کې ډاکټر لیکي (Dr.-Leaky) په تانګانیکا کې د زینګانتروب انسان فوسیلونه او هډوکي ترلاسه کړل. هغه څرګنده کړه چې تر پلیوستس دورې د دریو میلیونو کلونو په شاوخوا کې دمخه اوسېدلی دی.

۸- د ګبریل (A-I Gabriel) او موریته (A-Mortillet) په نومونو پوهانو عقیده درلوده چې تر نیاندرتال انسانانو میلیونونه کاله وروسته د ژوندانه د تکامل په اوږدو کې پوه او باخبر انسان د (Homo-Sapien) تر نامه لاندې خپل ژوندانه ته ادامه ورکړه.

پر دې سربېره د لرغونپېژندنې او بشرپېژندنې پوهانو تر تاریخ دمخه انسانان د ککرۍ د مغزو د حجم پر بنسټ هم په ټاکلي ډول طبقه بندي کړل او څرګنده یې کړه چې:

د پتیک انتروپ د مغزو حجم (۹۰۰) سانتي متره مکعبه او د سین انتروپ انسان د مغزو حجم (۱۲۰۰) سانتي متره مکعبه او د نیاندرتال انسان ماغزه (۱٤۰۰-۱۵۰۰) سانتي متره مکعبه وو، چې د موجوده انسانانو د مغزو معادل کېدای شي.

## په لرغونو ځایونو کې د کیندنو او پلټنو اصول:

لکه چې د مخه مو وویل د لرغونپېژندنې د څېړنو بنسټیز یا محوري زړی په سیمه کې پلټنې او کیندنې دي او د دې کار پر بنسټ د تیرې زمانې او دوران له پټو رازونو څخه پرده پورته کېږي. داسې چې څرګند مثالونه یې چې د تر تاریخ د مخه انسان له لومړنیو پاتې شونو راپیل او د تمدنونو تر عصره ادامه مومي، د لرغونپېژندنې د همدې فعالیت او عملي څېړنیز کار په وسیله وو. چې د څرګندونو او معلوماتو په توګه د هغو په برخه کې څو مطالب وړاندې کوم:

لکه چې د مخه مو یادونه وکړه کیندنې د دوو بنسټیزو موخو لپاره ترسره کېږي:

۱- د بېلابېلو دورو د مادي آثارو د لاس ته راوړلو لپاره.

۲- د عصرونو، تاریخي دورو او تر هغو د مخه لړیو د تثبیتولو او ځانګړي کولو لپاره (د تمدن او فرهنګ د ډول، اصالت او مفکورې، رامنځ ته کولو، انکشاف، تطور او تکامل په ګډون).

د دې موخې لپاره لرغونپېژندونکي د نورو علومو لکه جیولوجي، جغرافیا، بیولوژي، انتروپولوژي او انجنیري مهندسۍ په مرسته او ملګرتیا کولای شي خپلې پراخه څېړنې او عملي کار په لرغونو سیمو کې پیل او سرته ورسوي.

د لرغونپېژندنې د عملي کار په قانونمندۍ کې د کیندلو دوه طریقې په پام کې نیول کېږي او نور عملي کارونه د پلټنو او کیندنو د علم د فروعاتو په ډله کې شمېرل کېږي.

دا دوه قانونمندۍ دا دي:

۱- هغه کیندنې چې د لیدنو له مخې او په فرونتال (Fourontal) شکل د لرغونپېژندونکي په وسیله ترسره شي، پوهان دا ډول پلټنې د اوریزنتال (Horiesental) یا افقي کیندنو په نامه یادوي. او د ځمکې له سطحې څخه کښته د پوړیو او طبقو په مطالعې سره ادامه مومي.

۲- هغه کیندنې چې عموماً له مقابل اړخه ترسره کېږي او په عین وخت کې د پوړیو له څارنې او مطالعې پرته ترسره کېږي، د ویرتیکال (Wertical) په نامه یادېږي. دا ډول کیندنې هغو کلکو او ډبرینو جوړښتونو ته ځواب وایي چې پرله پسې زمانو کې د خاورو تر پردو او طبقو او کانو او د طبیعي ایروزوپونونو د پرده بندۍ تر قانون لاندې د ځمکې پر سطحه پاتې شوي او د لوړو خو کلکو غونډیو بنه یې غوره کړې ده. دا ډول کیندنې اوس مهال د لرغونپېژندنې په نړۍ کې د منلو وړ نه دي او په لرغونو سیمو کې د څېړنو له کتاره وتلې دي.

## د لرغونپېژندونکیو د ټولي په وسیله د کیندنو ټکنالوجي:

وروسته تر هغه چې لرغونپېژندونکي په پام کې سیمه د لرغونتوب له پلوه تایید کړي، مخکې له دې چې په عملي کار او څېړنیزو کیندنو لاس پورې کړي، سیمه د کیندنو د نقطې د ویشنو د برخې په بنسټ په ګوته کوي. بیا د کیندنو له یوې نقطې څخه چې تیو د ولیت ته د ورته دستګاه په وسیله د مربعاتو په ډول تقسیم بندي شوې، سیمه د نقشې پر مخ په ټاکلو اندازو د (۱، ۲۰) په معیار او مقیاس رسموي او له کیڼ لور څخه ښې لور ته په نښو یا د هجا د تورو په علامو یا په لاتیني الفبا سره لیکي او له پورته کښته خوا ته په لاتیني یا رومي نومرو سره نقطه ګذاري کوي او خپل کار پیلوي. د نقشې پر مخ

عموماً دا ډول رسموني د اوريزنتال يا افقي کيندنو لپاره کارېږي. او لرغونپېژندونکي پوړۍ په پوړۍ کښته کيندنې کوي او هره لرغوني پرده او پوړۍ مطالعه کوي. په لرغونپېژندنه کې د کيندنې نقطه د ()-+ په طريقه پای او ()- نقطه پيل ګڼي. له ( ۲۰ - ۵۰ ) سانتي مترو پورې پرده عموماً د شرفيس يا هوموس (Humus) په نامه منل کېږي چې عموماً ترې د اوسني عصر وګړي ګټه اخلي. او يا پر لرغونې طبقې اضافي قشر ور دبره شوی وي. د ارتفاعاتو په هره پوړۍ کې له تيو دوليت دستګاه او په لرغونې معمارۍ کې د ساختمانی ښکلاوو او د لرغونو طبقو په ترکيب کې له فوتوګرامتريک (Fotogrametric) دستګاه څخه کار اخيستل کېده.

## په ختيځ کې علمي پلټنې:

د نړۍ د مشهورو لرغونپېژندونکيو په وسيله علمي پلټنې د نولسمې پېړۍ له منځه راپيلېږي. داسې چې بوټا (Botta) او لايارډ (Layard) د بابل قصرونه او دا سوري پاچاهانو ودانۍ او آثار کشف او تر لاسه کوي او د بين النهرين يا مېزوپوتامي د ښارونو کنډوالې په (لاګاش) کې معرفي کوي او په مصر کې د معبدونو او مړيستونونو پاتې شوني تر مطالعې لاندې نيسي.

دمورګان (J-Demorgan) په نامه بل پوه د بشري ټولنو د پيدايښت دمخه وخت پورې اړوند آثار د ايران په لوديځ او مصر کې کشفوي. همدا ډول فلايندر (Filinders) د کاهون د مشهور ښار چې د (فيوم) د وادۍ په څنډو کې پروت دی، آثار لاس ته راوړي او په کوچنۍ آسيا کې بل پوه د هيتي پلازمينه د (هوتوسو) ښار له خاورو راوويست. له ( ۱۹۲۰ - ۱۹۳۰م) مو کلونو پورې د يوې لسيزې په واټن کې لرغونپېژندنه او د هغې څېړنې ډېرې ګټورې وې. د

پخوانی هند د تمدن کشف لکه د موهنجودیرو او د هړا په تمدن د سند په حوزه کې، د اکدو او سومر د ښارونو مطالعه، او د فنیقیانو د اوګاریت ښار او د ننني سورې په شمال کې د سامان ښارونو معرفي د پلټونکیو او لرغونپېژندونکیو یو بل عملي فعالیت دی چې د (۱۹۲۲م) او (۱۹۲۳م) مو کلونو ترمنځ پیل شوی. همدا رنګه له (۱۹۲۲-۱۹۲۷م) مو کلونو پورې د فرانسویانو، لکه کرل، هاکن ګتیوري پلټنې د ډېر ښو فرانسوي لرغونپېژندونکیو تر مشرۍ لاندې د افغانستان د ننګرهار د هډې په سیمه او همدا رنګه د پلخمري د (۱۵) کیلومترۍ په سره کوتل او د آمو او کوکچې سیندونو په ګډونځای او په یوناني ښار ګوتپې آی خانم کې د (۱۹۵۱-۱۹۵۷م) کلونو ترمنځ دیول برنارد تر مشرۍ لاندې زیات مهم او پراخ برې شمېرل کېږي. همدا رنګه د امریکا د پنسلوانیا پوهنتون د طبیعي علومو د څېړنو د پروفیسورې لویی دوپري (Louis-Dupre) پر له پسې، مهم او ارزښتمن فعالیتونه د هېواد د شمال د آق کپرک، چنار ګنجشکان، دره ء کور او نورو سیمو کې د یادولو وړ دي.

لرغونپېژندونکیو په همدې ډول د ډېر لیکونو او لیکلو مدارکو د کشف په برخه کې له (۱۸م) مې پېړۍ څخه د نولسمې پېړۍ تر وروستیو پورې مهم رول لوبولی دي، لکه چې په (۱۸۰۲م) کال کې د ګروتفند په وسیله په میخي لیک د کښل شوي ډېر لیک لاس ته راوړل او د ایران د شاهنشاه خشایارشاه د زماني د ډېر لیک ژباړې د لرغونپېژندنې د مسایلو په منځ کې ډېر بدلون راوست.

نو له دې امله هغه څه چې پوهانو د لرغونپېژندنې په برخه کې په ختیځ کې او په ځانګړي ډول په افغانستان کې ترسره کړي او په دې مهال ډېر مهم هم شمېرل کېږي هغه خپل فصل ته پرېږدو.

## دویم څپرکی:

# په افغانستان کې د لرغونپېژندنې تاریخچه

لرغونپېژندنه زموږ په هېواد کې اوږده سابقه لري؛ خو موږ یوازې د هغو لړۍ پلټنو او څېړنو یادونه کوو چې تر اتلسمې پېړۍ راهیسې ترسره شوي او په منظم او پرله پسې ډول نه وې. او اکثر هغه کسان چې د افغانستانه ځمکو ته راغلي د نولسمې پېړۍ په منځ او آخر کې وو او ټول مسلکي کسان او لرغونپېژندونکي نه وو، ذوقي عوامل د دې لامل شوي چې د هېواد یو شمېر ثقافي او فرهنګي امانتونه په ناقانونه توګه له ځان سره یوسي او دې ته لاره اواره شوې چې په یو لړ غیر علمي کیندنو لاس پورې کړي، چې د افغانستان د لرغونپېژندنې د څېړنو تاریخچه کولای شو له (۱۹۲۲م) کال وروسته د فرانسې د دولت او د وخت د حکومت ترمنځ د رسمي تړون په کولو سره د ترټولو پخوانیو علمي او ګټورو څېړنو په توګه وګڼو ویلای شو چې زموږ هېواد له هغه کاله تر اوسه پورې د لرغونپېژندنې د نړۍ په پرمختګ او تکامل کې ډېره اوږده سابقه او لرغونتیا په برخه شوې ده.

په افغانستان کې د لرغونپېژندنې د څېړنو تاریخ په دوو بنسټیزو پړاوونو ویشلای شو:

یو د هیواد په بېلابېلو سیمو کې په اتلسمه پېړۍ یعنې په (۱۸۲٤م) کلونو کې د لرغونپېژندنې غیر علمي څېړنې او بل له (۱۹۲۲-۱۹۷۹م) کال پورې د لرغونپېژندنې په اړه علمي او عملي څېړنې.

نو هغه کیندنې او څېړنې چې تر (١٩٢٢م) کال وروسته په بېلابېلو سیمو کې ترسره شوي گټوري او نېکې زېږندې یې رامنځ ته کړي چې د افغانستان د ملي موزیم آثار د گندهارا Gandhara په حوزه کې تر ټولو شتمن آثار گڼل کېده. او د آسیا د نورو سیمو په کتار کې د یوې غوره او مهمې سیمې په توگه شمېرل کېږي. نو له دې امله د اروپایي او امریکایي هېوادونو لرغونپوهان د تر تاریخ د مخه او تاریخي بېلابېلو عصرونو او دورو د موجودیت په پام کې نیولو سره تر (١٨٢٤-١٨٣٤ او ١٨٤١) مو کلونو وروسته دې هېواد ته راغلل. ځکه د افغانستان لرغوني هېواد په مرکزي آسیا کې د شتمنو او غني ترینو هېوادو له ډلې څخه شمېرل کېږي.

لکه چې پوهېږو د برونزو د دورې پای او د اوسپنې ټینگښت او تولید د آریایانو له عظمت او برم سره نژدې و، چې د آمو په دواړو غاړو په پېړیو مېشت وو، او یو درونده مدنیت او ثقافت یې درلود. له هغې جملې څخه د آریانا د ځمکې چې په (١٦) مهمو ټوټو ویشل شوې وه، لوی امانتونه د اوستا لوی کتاب، د سپنتمان زردشت په لاس کښل شوی و د هندوکش د آسمان څکې لړۍ د شمال په پراخو ورشوگانو او د ریگ ویدا کتاب د دې لړۍ د سویل په پراخو ورشوگانو کې گڼلای شو. د هخامنشي امپراتورۍ د دریم داریوش پر مهال د آریانا د ځمکې یوه برخه نیول او د آریایي پښتوانې تمدن په ډېرو برخو کې د والیانو (ستراپیانو) ټاکلو د هخامنشي ثقافت سره د گدون له امله ډېر لوی فرهنگي، تجارتي او اقتصادي بدلونونه په سیمه کې رامنځ ته کړل او دا ثقافت او ښیرازي د دې لامل شو چې د اوسېدونکو او د فارس، بلخ، باختر او پښتوانۍ گندهارا ترمنځ د اړیکو ټینگېدو په اروپایي نړۍ او له هغې جملې په

يونان، روم، کريت، د پيرګمون په شاهنشاهۍ او کوچنۍ آسيا کې افغانستان وپېژندل شي او د يرغلګرو لوی سېلاب د ستغو او ستونزمنو لارو تر وهلو وروسته، افغانستان ته رامات شي.

له هغې جملې څخه په دريمه قبل الميلاد پېړۍ کې د مقدوني سکندر تر مشرۍ لاندې د يونانيانو د يرغل مثال وړاندې کولای شو چې زموږ هېواد ته راغلي دي او د شمال او سويل په ډېرو سيمو کې يې په خپل نامه نظامي او کلتوري ودانۍ د سکندريو په نامه وداني کړې. وايي چې لومړۍ سکندريه يې د آريانا په هري يا زموږ اوسني هرات کې د ارتوګوانام د سکندريې په نامه ودانه کړه. د پروفتازيا (Proftazia) سکندريه، چې مؤرخين د هغې ځای په نني سګستان يا سيستان (د الماني پوه پروفيسور کلاوس فيشر په عقيده د غوايي پوستکی) کې او ځينې يې د فراه د فريدون او سنۍ کلا ګڼي، له دې قرارګاو څخه يوه بله وه. په همدې ډول د هندوکش په خوا کې د قفقاز يا کوکازوس سکندريه، بله د دوپيا السندا يا نننيو هوفيانو سکندريه او همدا رنګه د اکسوس، مرګيانا او سغدوم سکندريې د هېواد په غاړو څندو کې وداني او يو شمېر يونانيان په دې ځايونو کې د هغوی د مستعمرو په نامه د اوږدو کلونو ان له پخواني افغانستان څخه د سکندر تر وتلو وروسته هم پاتې شول. د يونانيانو او سلوسيديانو په (۲۰۰) کلنه واکمنۍ کې د آريانا د ځمکې شتمن فرهنګ د يوناني راوړی شوي فرهنګ سره يوځای او زېږندې يې د يونانو - باختري په نامه فرهنګ رامنځ ته کړ.

همدا رنګه په (۱۱۷ - ۷۵ ق م) کې د ساکانو يرغل هم له کلتوري او ثقافتي اړخه بدلونونه رامنځ ته کړل چې زموږ د خاورې د کوشانيانو د لړۍ په

رامنځ ته کېدو سره د هندوکش په شمال او سویل کې دې ثقافت لوی پرمختګ وکړ او پوختابه ته ورسېد. او د ورېښمو لاره یا کاروانې لاره چې د چین د هېواد له لویانګ (Loyang) څخه د هندوکش د ستغو او ګرانو لارو تر وهلو وروسته سویل خوا ته او د مرګیانې، سغدیانې او هیرطیانې تیسفون له لارې په شمال کې له هګباتانا یا همدان څخه تر تېرېدو وروسته د مدیترانې په څنډو کې غځیده، شهرت او مادي او معنوي حاصل یې د سویلي اروپا او کوچنۍ آسیا د ډېرو یرغلګرو په ګډون د سوداګرو، پوهانو او هنرمندانو پام هم ځان ته راواړاوه او له هنري او فرهنګي اړخه هېواد دومره شتمن شو چې د آسیا په زړه کې د غمي په څېر وړنګن او نامي ومنل شو. د پخوانیو متونو مطالعه چې د یونانې، رومي، ارمنی او چینایي مؤرخانو په وسیله کښل شوي وو او کولای شو له هغوی څخه د سترابون (Strabon)، آرین (Aryan)، پلوتارک (Plotark)، پلینس (Plimius)، سیریاکس (Syriacus)، تروګوس پامپیوس (Traugos-Pompayus) غوندې نومونه یاد کړو. د باختر، آریانا او ګندهارا په اړه د ثقافتي، اقتصادي او انتروپالوجي د پدیدو او بېلابېلو پېښو د بهیر له مخې چې د هېوادونو د فاتحانو له خوا د آسیا په دې برخه کې رامنځ ته شوې وې، اروپایي پوهان یې دې ته وهڅول چې ددې ځمکې تاریخي دورې د اوږدو پلټنو او څېړنو په وسیله روښانه کړي، او د افغانستان تاریخي شتمني او په نړیواله سطحه د آسیایي هېوادونو د تاریخ او تمدن په برخه کې مهم اطلاعات او معلومات وړاندې کړي. نو له دې امله په افغانستان کې د لرغونپېژندنې دوه پړاوونه د منلو وړ دي:

۱- د ناقانونو پلټنو او له افغانستان څخه بهر ته په ځانګړي ډول د

اروپايي شتمنو او مېنه والو شخصي موزيمونو او کلکسونونو ته د کشف شويو آثارو د لېږدونې پړاو

۲- د رسمي او قانوني تړونونو په وسيله د مؤرخينو د کلاسيکو متونو په بنسټ د علمي څېړنو او پلټنو پړاو.

## د لرغونپېژندنې د ناقانونه پلټنو پړاو:

تر هغه ځايه چې څرګنده ده د اروپايانو د لومړۍ ډلې تر راتګ (له ۱۲٤-۱۸٤۲م) پورې د آسيا د لويې وچې د لرغونپېژندنې د نقشې پر مخ د لرغونو حوزو له مخې، په افغانستان کې د لرغونپېژندنې په اړه په کيندنو او پلټنو لاس نه دې پورې شوی. د برتانوي سياسي او پوځي نمايندګانو، لکه الکساندر برنس (Alexander Burnes)، کپتان تابوت (he tabot)، متلاند (Maitland)، ويليام سمپسن (W. Simpson) او مورکرافت (Morcraft) په نامنظمو کيندنو او پلټنو سره چې په چټکۍ ترسره شوې، ددې ځمکې د يونانو - بودايي دورې کشف شوي تر ټولو غوره آثار او مجموعې اروپايي موزيمونو او په ځانګړي ډول برټش موزيم ته ولېږدول شوې.

په همدې ډول چارل مسون (Ch. Masson) ډاکټر هونيک بيرګر (Honigberger) او په بېکبل شوی هند کې په وايسراګانو پورې اړوندو مشاورينو پر هغه مهال خپلې ډېرې پلټنې په ننګرهار يا پخواني ناګارهارا، اوسنۍ درونټه او د سپين غر په لمنو کې ترسره کړې. ددې يادو شويو غير علمي څېړنو زېږنده هماغه د طلايي تبرکاتو صندوقچه وه چې يوولس سانتي متره لوړوالی (۷) سانتی متره قطر او يو نيم ملي متر پنډوالی يې درلود او د بودا د جسم انځور او د دوو هندي خدايانو! برهما

او اندرا انځورونه په هغې کې له چترۍ ډوله سینګارونو سره تر ستر ګو کېدل، د بیماران له مشهورې ستوپې کشف او د لندن او سنې موزیم ته ولېږدېدل.

په بنستیز ډول چارل مسون د لوی سکندر د تګ لورې د مطالعې په مقصد چې زمور له هېواد څخه تیر شوی د هغه د پاتې کېدو سیمې لکه بګرام، هډه او نورې سیمې د آسیایي بنګال په ورځپانه کې په خپله مقاله کې په (۱۸۳٤-۱۸۳۹) کلونو کې خپرې کړې. په دې ترتیب د لومړۍ ځل لپاره ددې مقالې تر خپرېدو وروسته په هېواد کې د علمي پلټنو لاره پرانیستې شوه. چارل مسون د لومړي ځل لپاره د پخوانی ګندهارا په بېلابېلو سیمو او هډه یا هیلوی کې چې هېوان تسانګ یې په (۶۳۰) میلادي کې یادونه کړې وه، خپلو پلټنو او څېړنو ته دوام ورکړ. چې په لنډه توګه یې یادونه کوو:

چارل مسون چې کله له خپلو نورو مرستیالانو سره افغانستان ته رارسېږي، نو لومړنی کتنې یې هماغه د جلال آباد د او سني ښار د تپولو برخو سروې وې، نو تصمیم یې ونیوه چې لاندې سیمې د یو شمېر ځایي وګړیو په مرسته چې هغه مهال یې د خپلې خاورې د شتمن فرهنګ له اهمیت او عظمت څخه خبر نه درلود او عقیدوي تعصباتو هم هغوی دې ته اړ ویستل چې ددې بې مسوولیته کسانو سره مرسته وکړي او په اوږدو کیندنو او پلټنو کې هم ورسره شریک وي، وپلټي.

چارل مسون د کتپور د ستوپو په ژورو کې د درونتې په سیمه، پساني (Passani)، بیماران (Bimaran)، ده رحمان (Deh Rahman)، سرک توپ (Surk-tope) د ننداري ستوپې، د ګودرې ستوپې، د بحرآباد او سلطانپور

سیمه، د شتراک غونډۍ، د خواجه لاهوري غونډۍ، د چارباغ ستوپې او د جلال آباد د هډې په سیمه کې چې د اوسني جلال آباد ښار د سویل په دولس کیلومترۍ کې پرته ده هم پرله پسو کیندنو ته لاس وغځاوه. او په ځینو نورو سیمو لکه توپ غونډۍ، د هډې سمڅې او له هغو ورهاخوا په خورد کابل، د وردګو خوات او د بګرام په سیمو کې هم په یو لړ فعالیتونو لاس پورې شو او دې یادو شویو فعالیتونو زېږنده یعنې د رومي، یوناني، کوشاني پاچاهانو اندوګریک او د هندو شاهي د وروستیو واکمنو سکې د متبرکو صندوقچو او ګانو په ګډون، چې عموماً د هغو غمي به له یاقوتو، زمردو او پیازي لعلو څخه وو، له یو ډول سرینبناکو موادو سره عموماً محلول (ښایي مشک)، د بودا او بودا ستوا د مجسمو تر ټولو غوره سرونه، چې تنې به یې ترې غورځولې له ځانه سره یوړه.

ویلیام سمپسن (W. Simpson) په (۱۸۷۹م) کال کې د جلال آباد ښار د سویل په (٤-٥) کیلومترۍ کې د بودایي ګندهارا تر ټولو غوره او مهمو ستوپو میرویزوس او شایسته توپ کې چې مثالونه یې د ګندهارا په حوزه کې ډېر کم تر سترګو شوي دي، خپلې کیندنې پیل کړې او پر نورو سکو سربېره یې (هوویرکی، کچولومر، سبیسانو، دومیانو وترانیو) د کوشاني ځواکمن امپراتور کنشکا سکې چې پر شایې د بودا ولاړه مجسمه ضرب شوې ده او د لومړۍ او دویمې میلادي پېړۍ په منځ پورې اړه لري، کشف کړې. جلال آباد چې پخوانی نوم یې ناګاهارا (Nagahara) دی او د هند په بیهار حوزې پورې اړوند د ګوشوار په ډبرلیک کې په څرګنده یاد شوی، له هغو ځمکو څخه دی چې دوه ځله پرې هنري او فرهنګي یرغل شوی یو د میتانو (Mi-tas) یا یفتلیانو له

خوا او بل احتمالاً د غوري پاچاهانو په ځانګړي ډول قطب الدین محمد ایبک، او د صفاریانو د وروستۍ لړۍ او د اور لمانځنې په لویه دوره کې.

په همدې ډول د (۱۷۹۳ او ۱۸٦۱م) کلونو ترمنځ عملاً یوه بل کس مکوداګوست د کاپیسا (Kapichi) په سیمو کې پلټنې او څېړنې ترسره کړې. د مکوداګوست له نژدې مرستندویانو څخه یو هم فرانسوی لرغونپوه، ښاغلی ژاکویت دی چې د افغانستان د هغه مهال له دولت سره تر رسمي تړون د مخه یې د بګرام کاپیسا په سیمو، هډې او د حصار شاهي او کامې په اړوندو سیمو کې سروې او یو لړ معلومات راغونډ کړي دي. نو ویلای شو چې لرغونپېژندنه یې د لومړي ځل لپاره په (۱۸۲٤م) کال کې خو په غیر رسمي ډول د افغانستان په ډېر مهمو او باعظمتو غونډیو او وادیو کې خپله لاره پرانیستې ده او له هماغې نیتې راهیسې یې د پوهنې او پلټنې په حلقو کې خپل ځای وتاکه.

## په افغانستان کې د لرغونپېژندنې د علمي څېړنو پیل:

څرګنده ده چې د لرغونپېژندنې علمي څېړنې هغه مهال په افغانستان کې پیل شوې چې افغانستان تر (۱۹۱۹م) کال وروسته یوه خپلواکه سیاسي واکمني درلوده. په دې وخت کې د تیرو حکومتونو ګډوډۍ او بیروکراسۍ چې مرکزي او ولسي حکومت یې نه درلود، نژدې له منځه لاړې او له هغو هېوادونو سره چې افغانستان یې په رسمیت پېژندلی و، دیپلوماتیکې، او د دولتونو ترمنځ هر اړخیزې سیاسي، اقتصادي او فرهنګي اړیکې ټینګې شوې. په دې ډول د فرانسې د هغه مهال دولت لومړنی هېواد و چې د هېواد په شمال او سویل کې یې د خپلو رسمي پلټنو او څېړنو تړون د افغانستان له دولت سره په (۱۹۲۲م) کې چې له (۱۳۰۱) لمریز سره سمون خوري،

لاس لیک کړ. هغه مهال یې په افغانستان کې د فرانسوي لرغونپېژندونکیو ډله د دافا (DAFA) په نامه یادوله.

په دې زماني واټن کې د افغانستان حکومت او دولت د سیستماتیکو مطالعاتو او د منظمو او سمو څېړنو لپاره دا لاره اواره کړه چې بهرني پوهان په ښکاره او قانوني ډول زموږ د هېواد د لرغونو سیمو او لرغوني تاریخ په برخه کې په یو لړ کیندنو او علمي پلټنو لاس پورې کړي. خو هغه څه چې د اندېښنې وړ دي دا وو چې د تړون په متن کې د فعالیت د پراخوالي پولې یوازې تر دېرشو کالو پورې غځېدلې، او ترلاسه شویو آثارو په فرد پورې اړه درلوده او هغه آثار چې سره ورته به نه وو، که له هر ډول موادو څخه به وو، افغاني لوري ته خو هغه شمېر چې سره ورته به وو او له یوه ډول څخه به یې دوه سره ورته څېړې درلودې، نو د فرانسې د دولت د لرغونپېژندنې د ډلې په واک کې یا د هغوی ملکیت به و او ددې ترڅنګ د خپرېدو امتیاز او حق نېغ په نېغه د (دافا) د لرغونپېژندنې په ډلې پورې اړه درلوده.

فرانسوي لرغونپېژندونکیو د پروفیسور الفرد فوشه (A. Fouchei) تر ریاست لاندې د (۱۹۲۲م) کال د شوي تړون له مخې ومنله چې په افغانستان کې به په لاندې برخو کې خپلې علمي مطالعې او څېړنې ترسره کوي:

۱ - په افغانستان کې د ګریکو - بودیک یا (یونانو - بودایی) هنر یا د ګندهارا Gandhara مشهور هنر هراړخیزه مطالعه.

۲ - د بودایي دین سره د ګندهارا د هنر د ګډېدو اړیکې او له یوناني هنر سره یې د اړیکو څرګندول.

۳ - د لوی سکندر تر سوبو (فتوحاتو) وروسته په ختیځ کې د هلنیزم د خپرېدو څرنګوالي.

٤ - له افغانستان څخه د وربېښمو د تګ لوري مطالعه.

د پورته یادو شویو موادو او ددې ترون د منځپانګې په پام کې نیولو سره په (١٩٢٣م) کال کې چې له (١٣٠٢) لمریز سره سمون خوري فرانسوي پروفیسور الفرد فوشه د لومړي ځل لپاره د باختر په حوزه او هغه هم په مرکز یانې بلخ یا (بلهیکا) کې څو ځله یو لړ پلټنې او کیندنې ترسره کړې خو دغو هلو ځلو نتیجه ورنه کړه او دلیل یې د بشپړو امکاناتو نه درلودل او همدا رنګه د اسلامي دورې د ودانیو کنډوالې وې چې پر ځای پاتې وې. نو ویې نه شو کړای چې تر کنډوالو وروسته په ژورو کې کار وکړي. اړ شو چې په بلخ کې له کیندنو او څېړنو څخه لاس په سر شي بل ځای ته مخه وکړي او نتیجه ترې واخلي. سره له دې چې د بلخ توپ رستم او د بلخ ارګ د بودایي دورې له مشهورو ستوپو څخه شمېرل کېږي او د چین د شانګهای مشهور سیلاني هیوان څانګ (Hiuan-Tsang) په دې برخه کې پراخه ښودنې لري، خو د نوموړي د څېړنو د ارزښت نتایج د هغه لپاره خواشینوونکي وو.

په ښاغلي فوشه پسې وروسته، بل فرانسوي لرغونپېژندونکي د هندوکش د شمال د بودایي سیمو له پلټنو څخه لاس وانه خیست او په پیل کې هغه په (١٩٣٦م) کې چې له (١٣١٥) سره سمون خوري د کندز د شمال ختیځ په (٣) کیلومترۍ کې په هغه ځای کې چې هیوان څانګ په (٦٣٠) میلادي کې هلته د لسو معبدونو یادونه کړې وه خپلو څېړنو ته دوام ورکړ. ښاغلي ژوزف هاکن (J. Hackin) تر الفرد فوشه وروسته دویم کس وو چې د سرګردانۍ په پایله کې یې د بودا او راهبینو یا ستوکې (یو ډول شګې، چونه او د سپینو تیږو توتې) کشف کړې او دا هغه مهال د فرانسوي پلاوي د علمي څېړنو لومړنی

تېبغي وو. دا څو پرې شوي سرونه د ويهارا يو رواق او يا د بودايي معبد استوګنځای يو نه وو. د ټولې سيمې تر څېړنو او پلټنو وروسته جوته شوه چې ددې معبد يا سانګاراما (Sangarama عموماً بودايي معبدونو ته ويل کېږي چې يو زيات شمېر سپېڅلي آثار او ستوپې ولري. او معمولاً دا معبدونه يا سانګاراماګان دوه برخې لري چې د بودايي مشرانو او د راهبينو د استوګنې ځای او د بودايي سپېڅلو ودانيو ځای لکه ستوپې، دهليزونه، ايکونوګرافي يا مذهبي انځورونه او مجسمې له شکلو او نورو سره) د معمارۍ پلان تقريباً مربع و، هرې څنډې يې (٥٠) متره اوږدوالی درلود او سويل خوايې به يې (٣٠) متره اوږدوالی درلود چې له بل معبد يا له هماغه سانګاراما سره به نښتی و. له نېکه مرغه د ستوکي مجسمې سر چې له دې معبد څخه ترلاسه شوی او په يونانو - بودايي هنر پورې اړه لري، ډېر ښکلی او د ښاغلي پيکارد (Picardes) فرانسوي د طرحې په بنسټ د مجسمې دا سر له څلورمې پېړۍ او د مسيح لومړيو سره ډېر ورته دی. ته به وايې چې د کورنت (Corinthe) د هنري ښوونځي پياوړی اغېز پکې پټ دی.

تر دې وروسته د فرانسوي پروفيسور الفرد فوشه، ښاغلی (ګودار) او (ج- برتو) تر مشرۍ لاندې د هډې په بېلابېلو سيمو په ځانګړې ډول په لويه غونډۍ کې په (١٩٠٣م) کې په کيندنو لاس پورې کړ او ګريکو-بوديک عوره هنري آثار يې چې د هکنيک د ښوونځي تر کلک اغېز لاندې او د پيرګمون (Pergamon - د ليديې سويلي اړخ ته په کوچنۍ آسيا کې يوه سيمه ده) په طريقه وو ترلاسه کړل. په (١٩٣٨م) چې له (١٣١٧) لمريز سره سمون خوري، ښاغلي ژوزف هاکن د بګرام په شاهي ښار کې په پلټنو لاس پورې کړ. د پلټنو

زیرنده د بګرام د مشهورې خزانې کشفول دی، چې په یونانو-رومن، هندي او چینایي آثارو پورې اړه لري چې عموماً د سوداګرۍ او د ورېښمو د لارې له امله له چین، روم، فارس او هند څخه د کوشانیانو امپراتورۍ ته رانتوتي او ددې آثارو تر ټولو مهم هماغه د (میل فیوري) کاسې، هندي عاجونه (د فیل غاښونه) چینایي لاکونه او له ګچو څخه د خدایانو او الهو مډالونه دي چې د بګرام له لسم نمبر خونې څخه لاس ته راغلل. نورو غورو آثارو لکه د سیرایس هرکول برونزي مجسمې، هارپوکرات د روم جوړو ښکلو ښیښه یي ګیلاسونو د اندوګریک، یونانو - کوشاني او کوشانو - ساساني دورو یو شمېر سکو، له پخوانیو دولتونو سره د ثقافت او فرهنګي اړیکو په ډګر کې د هېواد زرین تاریخ لا زرین کړ. له دې وروسته ښاغلي (هاکن) په نورو سیمو لکه فندقستان، بامیان، مرنجان غو[illegible]ۍ او نورو کې یو لړ علمي پلټنې ترسره کړې او د هغه ددې علمي هڅو مجموعه د فرانسوي پلاوي په خپرونو کې د (DAFA) د خپرونو په نامه چاپ شوه. د هغو سرشمیرنو له مخې چې هغه مهال یې د کابل ملي موزیم ته وړاندې کړې، ددې پلاوي د څېړنو په اړه په لاندې ډول څه لیکلای شو:

١- په (١٩٢٨م) کال کې یې (٥٠٠) ستوپې او څو بودایي صومعې له خاورو راوویستې.

٢- (٢٣٠٠٠) زره لوی او واړه ګچې سرونه یې ترلاسه کړل.

٣- د سکندریې د عاجي، کنده کاري او ښیښه یي لوښو، د رومي ګډو فلزاتو او د چینایي غورو لاکونو په ګډون یې د ډېرو ښکلو او مهمو آثارو زېرمه کشف او د کابل موزیم ته یې وسپارله.

بيا ښاغلي مونيه فرانسوي په (١٩٤٦م) کې خپلو څېړنو ته دوام ورکړ او د تيږو مجسمې او د سرو او سپينو زرو صندوقچې يې د شترک له معبد، نادر ناو او نورو سيمو څخه لاس ته راوړې وروسته په (١٩٣٠-١٩٤٠م) کلونو کې د کابل په حوزه يانې د کابل په مرنجان غونډۍ کې د اروابناد اعليحضرت محمد نادرشاه د قبر ترڅنګ، د ګلدرې په بودايي صومعه، شيوه کيو او د خيرخانې د کنډو په بيخ کې په لوی سوريايي يا د لمر لمانځنې معبد، فندقستان او سرخ کوتل (١٩٥١) کال کې ډاکټر شلومبرژه په لويو علمي او څېړنيزو کارونو لاس پورې کړ.

د آمو او کوکچې د سيندونو په ګډونځای کې د آی خانم د لوی ښار ګوتې کشف ددې پلاوي يو بل لوی برياليتوب و، چې د پام وړ خدمتونه يې د هېواد شتمن فرهنګ او تاريخ لپاره کړي دي.

په (١٩٤٩-١٩٥١م) کلونو کې ډاکتر دانيل شلومبرژه (Dr.D.Schlumberga) پنځه ځله د غزنويانو د تمدن په اړه د ډېرو څرګندونو لپاره په لشکرګاه کې د هلمند (Hirmandros) او ارغنداب (Argandois) په ګډونځای کې خپلې کيندنې او پلټنې ترسره کړې. همدا رنګه په (١٩٥١-١٩٥٧م) کلونو کې د ښاغلي برتو (J. Barthou) په وسيله د آی خانم يا ماه خانم ښار کشف شو. چې ښايي هماغه د (Oxus) يا آمو سکندريه وي. زيرنده يې د ښار د بنسټ اينبودونکي يعنی کی نی اسن او يوناني ډېر ليک و.

د نادعلي په شاوخوا کې په (١٩٤٥م) کال کې د ښاغلي ګريشمن له خوا د سيستان د تاريخي ښار تر تاريخ دمخه د برونز په دوره پورې په اړوندو غونډيو سرخدک او سفيدک کې کيندنې پيل شوې او د (١٩٥١م) کال په منې

کې د ښاغلي کنرل په وسیله د منډیگک مهمه سیمه چې د برونزو او نوې تیږې په دورو پورې د اړوندو ودانیو (۱۳) طبقې لري، کشف او آثار یې د کابل موزیم ته یوړل شول. منډیگک د کندهار د اوسني ښار د شمال لودیځ په (۳۰) کیلومترۍ کې پروت دی. د مور آلهه او ډېر خاورین لوښي یې چې موهنجودارو او هرا په ته ورته دي، ډېر اهمیت لري.

د فرانسوي پلاوي د څېړنو له مخې زموږ د ځمکې د شهرت گونگوسه او آوازه د نړۍ غاړو څنډو ته ورسېده. او له اروپايي او امریکايي هېوادونو څخه ډېر شمېر پوهان زموږ هېواد ته راغلل په (۱۹۵۳-۱۹۵٤م) مو کلونو کې نوموړي پروفیسور لرغونې تیږې پورې اړندې سیمې او په مجموع کې د تیږې د دورې د سمڅو موندلو لپاره په بلخ او کندز کې پلټنې ترسره کړې. او د شمشیر غار په اړه یې په زړه پورې مطالب خپاره کړل او د شمال حوزو ته یې د لرغونې تیږې د عصر په موخه له ملگري پلاوي سره سفر وکړ. او په موستېرین حوزه پورې اړوندې سیمې یې د ایبک په شاوخوا کې چې د توپولوجي له مخې د اروپا له موستیرین سره ورته والی لري تر لومړنیو کیندنو او مطالعې لاندې ونیوې. همدا رنگه یې د خپلو نورو مرستندویانو لکه نیپ گوین (P. Gohin) په ملتیا په گنجشکانو دره، قره کمر، درکور، غار مار او نورو ډېرو سیمو لکه د فارياب ولایت په (آس غار) او گرزیوان کې هم اوږدې کیندنې ترسره کړې چې موندنې او آثار یې د کابل په موزیم کې لیدلای شو.

له دې سره هم مهاله د (ISMEO) مؤسسې د لرغونپېژندنې ډلې یا د منځنی ختیځ او لرې ختیځ د مطالعاتو ایتالوي مؤسسې هم د افغانستان له دولت سره په (۱۹۵۷م) کال کې د علمي څېړنو او لرغونپېژندنې د پلټنو د پیلولو تړون وکړ. د هغوی د کار پیل په غزني کې و. لکه چې پوهېږو د اوومې

میلادي پېړۍ په دویمه نیمایي کې د زنبیل کورنۍ مشر د عربو د یرغلونو په وړاندې د جنګ و جګړې ډګر وګاټه؛ خو په نهمه میلادي پېړۍ کې صفاریانو چې سیستان یې هم تر واکمنۍ لاندې و، غزنی ونیو او دې ښار په لسمه پېړۍ کې د یو مهم، بابرمه، شتمن او تجارتي مرکز حیثیت وموند چې هند یې له فارس سره نښلاوه. د غزنویانو تر ټولو لوی با برمه عصر د غزنوي سلطان محمود دور (۹۹۸-۱۰۳۰م) شمېرل کېده. او په ختیځ کې یې تر ټولو لویه امپراتوري جوړه کړې وه چې هند، غزني او فارس پکې ګډون درلود. او غزني د نوموړي امپراتور پر مهال د علم، فرهنګ او اسلامي ادب پر مرکز اوښتی و. لکه چې د فردوسي شاهنامه د دې لوی پاچا په عصر کې تدوین شوه. د هغوی مهم فعالیت په غزني کې هماغه د دریم مسعود د قصر او د علومو د زده کړې د مدرسې کشف و چې له مرمرینو خښتو، سوري شویو او کوفي لیک لرونکیو تیږو او نورو قیمتي آثارو لکه لوښیو او د مهیشامورتي (Mahecamurti) له یوې مرمري مجسمې سره کشف شول. په دې ډول د غزني په سردار غونډۍ په (۱۹۵۹م) کال کې چې له (۱۳۳۱) لمریز سره سمون خوري د پروفیسور توجي او پروفیسور موریس تدي تر مشرۍ لاندې د ایتالوي پوهانو له خوا ارزښتمن کار وشو او بریالي شول چې د بودا ویده مجسمه له یو شمېر بودایي ستوپو او د شیوایي ماهیشواراسای د مجسمې له سر سره ترلاسه کړي. په حقیقت کې یې د یو دوه ایزمه مذهبي معبد یانې بودایي او شیوایي، د لرغونپېژندنې د پلټنو نړۍ ته وړاندې کړ. د یادولو وړ ده چې د ښاغلي پوه موریس تدي کار وکړ او زموږ د هېواد هر تاریخ او کولتور د روښانولو لپاره ډېر ارزښتمن او زړه سواندی و.

همدا رنګه په (١٣٥١ - ١٣٧٠م) مو کلونو کې د پخواني شوروي د لرغونپېژندنې ډلې د پروفیسور سریاینډي په مشرۍ د افغانستان د دولت د اطلاعاتو او کلتور له وزارت سره د مرستې تړون لاسلیک کړ، چې د هغه له مخې یې وکولای شول، د هېواد په شمالي سیمو کې یو شمېر پلټنې او سروې ګانې ترسره کړي. په (١٩٧٨م) کال کې یې چې کله د تر تاریخ دمخه (برونز) دورې د مطالعې لپاره د یمچک غونډۍ (Yemmchek-ghonday) په پنځه کیلو مترۍ په التین غونډۍ (Altien-ghonday) کې خپلو کیندنو ته دوام ورکړ. د باختري دورې پر لرغوني قشر (شوروي پوهان زیاتره دا کولتوري قشر اصطلاحاً د هخامنشي کولتور یا دورې په توګه کاروي) سربېره یوه لویه او ستره طلایي خزانه چې د عددونو شمیر یې (٢٦١١٢) آثارو ته رسېده د لویو کوشانیانو د پخوانیو، پاچاهانو، شهزاده ګانو او شهزاده ګیو له شپږو (٦) قبرونو څخه ترلاسه کړه. ددې آثارو په ډله کې یوازې دا نه چې د باختري هنر په تیپ او سبک د یوناني ارتمید الهي بودا ترلاسه شو، بلکې د تبریوس (teberios) یوه طلایي سکه، د پارتي میتراداتس، فراداتس یوه طلایي سکه او د هندي ګوپتا یوه نقره یي سکه د پاندي پادا له سمبول او د زمري له انځور سره له څلورم نمبر قبر څخه لاس ته راغلل. په همدې ډول د ښکلو او ظریفو طلایي هنرونو تر ټولو ښکلې بېلګې د (امېل، طلایي تاج، بنګړي، والۍ، پایزیب او طلایي تالۍ) په ګډون چې د استاما (Astama) په واسطه جوړې شوې وې، له یو شمېر نورو طلایي ګاڼو سره یې د باختر د ځمکې او په ځانګړې ډول د (اسه پوره ګان) یا اوسني جوزجان د هنر او فرهنګ شتمني زیاته کړې.

نوموړي آثار په (١٣٥٨) لمریز کې د کابل ملي موزیم ته ورکړل شول.

د جاپان لرغونپېژندونکي هم په (١٩٥٩م) کې افغانستان ته راورسېدل او د رسمي تړون په بنسټ يې خپلې کيندنې په (دورمان غونډۍ، چقلاق غونډۍ او د کابل د شمال په (٢٥) کيلومترۍ کې د سکندر په غونډۍ) کې پيل کړې.

د هغوی د څېړنو زيږنده د شمال په غونډيو کې د يونانو باختري دورې د وروستيو او په کوشاني تمدن پورې د اړوندو آثارو ترلاسه کول او په سکندر غونډۍ کې د هندوشاهي دورې او د کوشانيانو د وروستۍ دورې ځانگړي کول وو.

وروسته يې بيا د هېواد په ختيزو سيمو (فيل خانې، درونتې او هډې يانې لامم) کې هم خپلو علمي کيندنو، پلټنو او څېړنو ته دوام ورکړ او د کوشاني دورې سکې، ستوکي مجسمې، فلزي آثار او د گندهارا په هنر او نوموړې دورې پورې اړوندې ودانۍ يې کشف او د خپلو کارونو د وضاحت او خپرولو په برخه کې يې چاپي آثار رامنځ ته کړل.

د فدرالي آلمان د بن پوهنتون څېړنيز پلاوي هم په (١٩٤٩ - ١٩٥٠م) کال کې د افغـانـي سيستـان په لرغونې سيمه کې د خپلې سروې او پلټنو تړون وکړ او د نيمروز ولايت په لرغونو سيمو (چگيتي، تاروسار، اميرانو زيارت، خدايداد کلا، د کمال خان بند شاوخوا د تراخون په پوست گاو، زرد ولاخ او جوين کنگ يا پيشه وران) کې يې د پنځو کالو په اوږدو کې خپلو پلټنو ته دوام ورکړ. د هغو څېړنو زيږنده د نيمروز ولايت د اوبه خور د پخوانيو کانالونو (زرکان او زورکان) د سيستم پيدا کول وو، چې د کمال خان له بنده يې سرچينه اخيستـه او د نيمروز سيمې يې خړوبولې. په همدې ډول يې هم د اسلامي تمدن د بېلابېلو هنرونو او هم د صفاريانو، سامانيانو، غزنويانو او تېموريانو د معمارۍ په برخه کې يو شمېر پراخه مطالعات ترسره کړل

چې موندنې يې اوس په کابل موزيم کې شته. ددې پلاوي مشري د المان پوهنتون د استاد پروفیسور کلاوس فیشر په غاړه وه.

باید یادونه وشي چې د سیستان د تاروسار سیمه په (۱۳۵۱-۱۳۵۲) لمريزو کلونو کې د ډاکټر ډالس (Dr.Dales) او ښاغلي تروسډل (Trousdal) امریکايي په وسیله سروې او وکیندل شوه. او د غزنویانو او تیموریانو پر اسلامي دورې سربېره یو شمېر ختین او ډبرین آثار چې ښایی تر اسلامي تمدنه پخواني وي، ترلاسه شول. نوموړی کار اوږدنه وو او په دې سیمه کې نوموړي پوه خپلو علمي څېړنو ته ډېر دوام ورنه کړ.

## د افغانستان د لرغونپېژندنې د مرکز جوړېدل:

مخکې له دې چې د افغانستان د لرغونپېژندنې د انستیتیوټ په برخه کې یو لړ لازم مطالب څرګند شي، وبه ګورو چې د افغانستان د لرغونپېژندنې انستیتیوت د خپلواک انستیتیوت په توګه نه، بلکې د کابل موزیم د یوه څېړنیزې څانګې په توګه د (۱۳۳۸-۱۳۳۹) مو کلونو په اوږدو کې د اطلاعاتو او کلتور وزارت په چوکاټ کې رامنځ ته شو. بیا د افغانستان د لرغونپېژندنې د انستیتیوټ په توګه نه بلکې د کیندنو د څانګې په نامه د یوې څانګې په توګه چې په ځانګړي ډول يې د نقشې اخیستنې، د راپورونو او ګزارشونو د برابرولو او د ترلاسه شویو آثارو د طبقه بندۍ دندې په غاړه درلودې جوړ شو.

د کیندنو دې څانګې تر (۱۳۴٤) لمریز پورې د موزیم په چوکاټ کې کار کاوه او کومې علمي او څېړنیزې لاس ته راوړنې يې نه درلودې، خو تر دې دمخه ښاغلي غلام محی الدین خان ایوبي یو لړ کیندنې ترسره کړې چې د هغو په اړه وروسته غږېږو.

له هېواده بهر د تحصيل کړيو کدرونو په ترلاسه کولو سره په (١٣٤٥) لمريز کال کې د لومړي ځل لپاره د کابل موزيم د کيندنو څانگه د هغه له تشکيله جلا او د يوه مستقل انستيټوټ په توگه يې په کار پيل وکړ.

انستيټوټ د لومړي ځل لپاره خپل څېړنيز علمي کار د ارکيالوجۍ د علم په برخه کې د کاپيسا ولايت د مواى د غره په خم زرگردره کې چې د هغه ولايت شمال ختيځ ته پرته ده، پيل کړ. ددې کيندنو ترلاسه شوې نتيجې د کاپيسا په خم زرگر کې هماغه د مها يانې سرواستى وادين په طريقه پورې د اړوند بودايي معبد د لويې ستوپې موندنه وه. چې تر ټولو غوره بودايى مجسمې او د هديه وركوونكو مجسمې ترې ترلاسه شوى ددې آثار يو شمېر د كاپيسا ولايت سيمه ييز موزيم او يو شمېر يې د كابل ملي موزيم ته هم واستول شول. ددې كيندنو په وسيله يوه طلايي سکه چې ښايي سكه او يا د كاپيسا د سيمه ييزو پاچاهانو له مډالونو څخه وي، ترلاسه شوه چې د كرونولوجۍ (د زمانې علم) له مخې د كوشانيانو د وروستۍ دورې د تاريخ لپاره ډېر ارزښت لري.

تر دغې نېټې وروسته يعنې په (١٣٤٤-١٣٤٥) مو لمريزو كلونو كې د همدې كال په ژمي كې د افغاني لرغونپېژندنې پلاوي تر يوې لومړنۍ سروې وروسته د ننگرهار ولايت د هډې په سيمه كې د اوبن غونډۍ په نامه لرغونې غونډۍ تر پلټنو لاندې ونيوه چې هغه مهال د دولت لوړو مقاماتو ددې انستيټوټ هر ډول اوږد فرهنگپال ملاتړ وكړ او د ودې او پرمختگ لاره يې ورته اواره كړه. د هډې اوبن غونډۍ يو مهم معبد يا يوه ډېره ارزښتمنه شانگارامه وه چې د جوړښت اوه او د مذهبي او رياضتي (راهبي) ژوندانه پنځه پړاوونه يې وهلي دي. تر (١٣٤٥-١٣٥٨) مو كلونو پورې دا غونډۍ د ځوانو

لرغونپېژندونکیو او په ځانګړې ډول د محترم ډاکټر زمریالي طرزي او ددې کتاب د لیکوال په مشرۍ وکیندل شوه چې په پایله کې یې د بودایي بې ساری اسطورو رواق لرونکی مرکزی معبد او د بودایي راهبانو یو شمېر استوګنځایونه د ډېرو غیر منقولو آثارو په ګډون ترلاسه شول. ددې آثارو یو شمېر له ستوکي، ختینو او برونزي موادو څخه جوړ وو. دا معبد د ګندهارا حوزې د مذهبي او هنري رنسانس له ډلې څخه شمېرل کیدای شي چې ساري یې لږ لیدل شوي دي او (۱٤) ځله کیندنو - یې د بودایي هنري - مذهبي دورې ټولې پټې او ناحله قضیې حل کړي دي. تر ټولو ښه مجسمه چې ته به وایې له کورنت یا پیرګون څخه د ناګارهارا هډې ته راوړل شوې ده هماغه د هرکول ناسته مجسمه ده چې ان په لرغوني یونان کې یې ساری نه تر سترګو کیږي، خو د افغاني او یوناني سحرګرو هنرمند لاسونو په وسیله دا ښکلي هنري امانت د تلپاتې او بې ساري ښکلې په توګه وړاندې شو. له بده مرغه له (۱۳٦۹-۱۳۷۰) لمریز پورې د ستروستي وادین دا لوی معبد د متعصبو او تیاره فکرو مخالفینو له خوا ویجاړ او وسوځید.

## د افغانستان لرغوني سیمې:

د پوهانو د سروې ګانو او څېړنو له مخې څرګندیږي چې تر اوسه له (۵۰۰۰) زرو څخه زیاتې د پاملرنې او اهمیت وړ لرغوني سیمې په نښه او ثبت شوي دي؛ خو د معلوماتو او اطلاعاتو له مخې د هېواد له ډېرو مهمو فرهنګي او کولتوري مرکزونو څخه یو هم د بامیانو زر سمڅې او د هغه ځای بودایي معبد دی چې کوریایي ګرځندویانو لکه (هو - تچاو) او چینایي سیلاني (هیوان څانګ) د اوومې پېړۍ په لومړنۍ نیمایي (٦۳۰) میلادي

کې دا مهم فرهنګي او اعتقادي مرکز ليدلی دی او د دې ځای د دود ، د ژوندانه د ډول او مذهبي طريقو په اړه ډېر او په زړه پورې معلومات وړاندې کوي. د باميانو دره او د هغې دوه لويې کلاوې چې په دوو لويو او بې ساري مجسمو سره ښکلې وې ، د چينايي سيلاني په وينا ( ۲۰۰۰ ) لی ، يو لی ( ۵۷۰ متره ) ختيځ او ( ۳۰۰ ) لی شمال او سويل لور ته پراخې وې. د باميانو مرکزي ښار (۶-۷) لی شمال لور ته په (آخر کې مخ ځوړی دی) او په دې سيمه کې مېشت وګړي او بودايان يې د هنايانا په طريقې پورې اړوند د چوچې چو يا (لوکاراتاوادين) د مذهبي طريقې پيرو ګڼلي دي (هنايانا بودايي کوچنی او لنډې طريقې ته وايي) او د باميانو پخوانی نوم يې فان يان (Fan-Yan) ياد کړی دی چې تر نن ورځې پورې د تلفظ د طريقې او فونيتيکو قاعدو په تغيير سره باميان پاتې دی. او په پهلوي بنداهش کې د باميکان په نامه ياد شوی دی. پولادي دره ، ککرک ، د غلغلې او ضحاک ښارونه د باميانو له ډېرو لرغونو سيمو څخه شمېرل کېږي چې د اورنګزيب او چنګېز په يرغلونو کې يې زښت ډېر زيانونه زغملي دي.

فرانسوي پوهانو ، لکه (ګوادر ، هاکن او کرل) د (۱۹۲۲-۱۹۳۳م) مو ·کلونو ترمنځ د سمڅو د ديوالونو د انځورونو ، د باميانو د ( ۵۵ ) متره او (۳۸) متره بودايي مجسمو په تاخچو کې د سوريا د رب النوع او د بودا د ژوندانه د بېلابېلو صحنو د يو شمېر انځورونو په اړه چې د کوشانو - يفتلي او کوچنيو کوشانيانو له هنره اغېزمن دي او پر دې سربېره پکې د مرکزي آسيا د ګويتا او ګندهارا هنري - ثقافتي اغېز په ځرګنده تر سترګو کېږي ، ارزښتمنې څېړنې او مطالعات ترسره کړي دي.

## بګرام - ویګرام یا د کاپیسا اوړنۍ پلازمېنه:

لر تېولو هغو لرغونو او مهمو سیمو څخه چې تر اسلام څو تمدنه پخوا او د افغانستان د تاریخ دوه مهم، پړاوونه یعنې (یونانو - باختري او کوشاني) په ځان کې رانغښتی شي، یو هم بګرام دی هغه څه چې نن ددې مشهور ښار له کنډوالو او پاتې شونو څخه لاس ته راغلي د ودانیو ډېرین بنسټونه دي چې د یونانو - باختري او بیا د لویو کوشانیانو د واکمنیو په وسیله ایښودل شوي دي. د بګرام ددې ودانیو او شاهي ښار تاریخ دویمه قبل المیلاد پېړۍ او د دویمې میلادي پېړۍ منځ ګڼل کېدای شي.

د ښاغلي رومن ګرشمن په وسیله د بګرام د لرغوني سیمې کیندنو دا مسئله روښانه کړه چې د ښار پلان د یونانیانو د ښار جوړونې په اصولو جوړ شوی دی. او د ښار په دفاعي سیستم کې په بشپړه توګه له سیمه ییزې طریقې څخه ګټه اخیستل شوې ده. د ښار بنسټ د (هېپودام) په سیستم یا د جادې دواړو خواوو ته مربع ډوله ودانۍ د پافمنټ (Pafment) یا د ځمکې په مخ د اوارو تیږو فرشولو په طریقه، ایښودل شوی دی، چې تر (٥٠٠) مترو پورې د هغه مهال د پاتې شونو کنډوالې او سیمې لیدل کېدای شي او د منځني ختیځ له ښارو او ودانیو (دوراایروپوس Dura-Europus) سره ډېر ورته والی لري.

ددې لرغونې سیمې له پاتې شونو څخه یو بل هم د (عبدالله برج) دی، چې د دفاعي برجونو او دیوالونو له مخې د سکندر د زمانې قرارګاو ته ورته دي. او لکه د رومن ګرشمن او پروفیسور تولستو (Tolestove) غوندې لرغونپېژندونکیو د څېړنو په بنسټ د بګرام ودانۍ او د عبدالله برج د یونانو - باختري دور د خوارزم د جانباز کلا له ودانیو سره ورته والی لري.

د بگرام ښار د ډېوال اوږدوالی (۶۲۰) او پلنوالی یې (۴۶۰) متره و، چې د جوړښت پاتې شوني یې په درېو کونجونو یانې سویل - سویل لودیځ او ختیځ کې په ډرگنده لیدل کېږي.

هغه خونې چې سویل خواته دي له ۴۰ x ۴۰ x ۴۰ خښتو څخه جوړې شوي له یوې یانې لسمې نومرې خونې څخه نایابه ځیزونه لکه د چین لاک، د هند عاج، د روم بحیرې او مدیترانې میل فیوری کاسې له گچي مډالونو سره تر لاسه شول.

## د لوگر ولایت د خروار لرغوني سیمه:

خروار له تاریخي او لرغوني پلوه ډېره مهمه او شتمنه ولسوالي شمېرل کېږي. دا ولسوالي د لوگر په وروستی شمال لودیځ کونج کې د آسمان ځکو غرونو په منځ کې د کاسې په څېر پرته ده. له بحر څخه یې لوړوالی له (۲۷۰۰) مترو څخه ډېر دی. په واورو پټې لوړې څوکې لري. ترځمکې لاندې ډېرې اوبه یې د وادۍ د سیمو د تل ښېرازۍ او تازه گۍ لامل شوي. د څرخ له ولسوالۍ څخه د (۳۵) کیلومترو لارې تر وهلو او د خرپیچک له کنډوه تر تېرېدو وروسته هغه ځای ته رسېدای شو. د جمشید تخت او د سوناگر یا لرغوني سگاوند (سجاوند) معبد د لارې په اوږدو کې ښی خواته د لوړو څوکو په منځ کې پروت دی. له تاریخي پلوه یې پخوا د مها ایشواریزم او لمر لمانځنې د طریقې له امله زښت ډېر شهرت درلود. خروار چې د خپل موقعیت له پلوه د (لوگرنا) له ارزښتمنو او مهمو مربوطاتو څخه شمېرل کېږي، د جوړښت او مذهبي عقیدتي ژوندانه له مخې په درېو پړاوونو ویشل کېږي. په دې سیمه کې پر بودایي قانون او مذهب سربېره د سرواستي وادین ښوونځي مهایاني طریقه او د

لمر لمانځنې عقیده په دریو ساختماني دورو پورې اړه لري یانې د لومړي دور ودانۍ د وروستیو کوشانیانو د څلورمې او پنځمې پېړۍ په واکمنۍ پورې اړه لري چې د هډې د پنځم او شپږم پړاو له ودانیو او هنري طریقو سره سمون خوري. دویم پړاو یې په کوشانو - یفتلي (کوشانو - کیداري) واکمنۍ او دریم پړاو یې په کابلي رایانو او پاچاهانو یا هندو شاهانو پورې اړه لري.

د خروار پراخوالی، چې هغه لوی او غټ بودایي ښارگوټی گڼل کیدای شي، په هېواد کې یې تر هډې او بامیانو وروسته بل ځای سیال نه برېښي. ختیین گرانبیه آثار، معبدونه، صومعې او د بودا ستوا مجسمې، هدیه ورکوونکي، راهبان او ډېرې لویې او غټې ستوپې د یوې طلایي دورې ښکارندوی او په مجموع کې ارزښتمن شمېرل کېږي. د خروار ولسوالۍ مرکزي کلا چې په کافرکوټ مشهوره ده، موږ ته د هېواد په شمال کې د یونانو - باختري او لویو کوشانیانو د دورو لوړې، کلکې او محکمې کلاوې او ودانۍ چې په شهروان، کندز او تخار کې جوړې شوې وې را په زړه کوي. د بالاحصار یا کافرکوټ له څرنگوالي څخه جوتېږي چې په یوه ځانگړې دوره کې یې د گردیز او د میدان وردک له جلریز سره هماهنگي درلوده. او د پنځمې او شپږمې میلادي پېړۍ د وروستیو کوشانیانو یا کیدار و یفتلي واکمنۍ پر یوه مهال دا مرکزي ودانۍ جوړې شوې دي. د خروار د سراسري پلټنې په صورت کې کیدای شي د بودایي مذهب د مهایانی طریقې یو لوی ښوونځی کشف او د څو غیر منقولو موزیمونو په توگه هغه د هیوادوالو او نړیوالو ننداري ته وړاندې شي. او د محترم پروفیسور ډاکتر طرزي د نظریې په اساس د هغه تاریخ تر شپږمې - اوومې پېړۍ پورې رارسیږي کیدای شي.

## د کابل ولایت د سیدانو تنګي لرغونې سیمه:

د سیدانو تنګی هم یوه ډېره مهمه او ارزښتمنه سیمه ده چې د کابل د سویل لودیځ په (۱۲-۱۵) کیلومترۍ کې پرته ده. دا سیمه د جوړښت له مخې د غره په لمنه کې پرته ده او هغه د اوبو چینه چې دې سیمې ته ځېرمه شته پخوا یې د ریاضت ژوندانه ته هر اړخیزه لاره اواره کړې وه. د سیدانو تنګي لرغونې غونډۍ چې په څلورو پردو یا طبقو ویشل شوې ده یو ډېر مهم بودایي معبد او د خورد کابل، د مرنجان غونډۍ په څېر شبوه کیو، سهاکو، سنجد درې او یخ درې د ثقافتي ژوندانه همدوره ده. ستوپې د پوشته یې هنري (د نریو تیږو یو ډول ښکلاییزه معماري) ودانیو او د راهبینو د استوګنځایونو په ټیپ، رنګه قشر او دېوالي انځورونه لري چې تر اوسه پکې اصولي کیندنې نه دي ترسره شوي. د علمي پلټنو او کیندنو په ترڅ کې کېدای شي د بودایي مهایاني طریقې له لرغونو معبدونو څخه وشمېرل شي.

ددې معبد د جوړښت او د تیکرې مطالعاتو له مخې دا معبد په پنځمې او شپږمې میلادي پېړۍ پورې اړه لري.

### سنجد دره:

سنجد دره د ګل درې د معبد انډول د پنځمې او شپږمې میلادي پېړۍ د معبدونو له ډلې څخه ده. یوه مرکزي او نورې (نذري) دي. ددې معبد دننه یا مرکز کې د پخسې او خښتو رواقونه له ټیپ تیرلوب لیندیو او تېرو څوکو سره موجود دي. د هغه د ودانیو پلان په سیمتریک (یا د ۹۰ درجو واله ودانۍ درلودنکی) بڼه او یو بل ته مخامخ جوړ شوی دی. نور کوچنی معبدونه د غونډیو په سر پراته دي. سیمه د خوندیتوب له مخې د پاملرنې وړ ده. کېدای

شي سنجد دره په خورد کابل کې د بودايي مرکز د راغونډېدو تر ټولو لوی ځای وي. د لرغونپېژندنې د مطالعاتو او څېړنو په بنسټ دا سیمه په پنځمې میلادي پېړۍ پورې اړه لري.

## کانچک غونډۍ:

دا سیمه د امام صاحب په ښهروان کې پرته ده. د جوړښت له مخې د اومې خښتې او پخسې یو ډول طریقه ده. لوړ دیوالونه لري چې د (۲۰, ۱) مترو په پلنوالي له ژېړ ډوله ختو څخه جوړ شوي دي. د لرغونپېژندنې د مطالعې له مخې ددې سیمې لومړۍ طبقه په کوشاني او دویمه طبقه یې د یونانو - باختري دورې په ودانیو پورې اړه لري.

د لومړنیو اوسیدونکیو د ژوندانه پر مهال ښېرازه وه او کېدای شي د باختر د زرو ښارو له کلیو څخه یوه ودانې وشمېرل شي. ددې لرغونې سیمې ورپه لودیځ اړخ کې دی، چې د لیندۍ په څېر دی، خښتې یې په زنځیری طریقه او په مستقیم ډول لګول شوي دي. د هډې او د بلخ ولایت د شمال غونډۍ د شیوايي معبد د لبرژین انډول ده. دویمه طبقه یې د تیکر په مارپیچ ډوله پاتې شونو او مثلثي سینګارونو مور. په کوشاني واکمنۍ او د هغې دورې په فرهنګ او ثقافت په بشپړه توګه ډاډمنوي.

## قرغان غونډۍ:

د قرغان لرغونې سیمه چې د اکسوس (آمو) د سیندنۍ برید پولې په (۶) کیلومترۍ کې پرته ده مستطیل ډوله جوړښت لري او د یوناني دورې د وروستۍ او د کوشاني دورې د پیل د لومړۍ میلادي پېړۍ د یوې کلا په څېر

ده. ددې کلا د شمالي کونج له يوه لوی دېوال اکروپول يا قصر سره د نښتو اټکل کېدای شي. لوړوالی يې (١٧) متره او د ودانۍ د شواهدو له مخې يې اوږدوالی (٨٠) متره او مرکزي وداني يې (١٥) متره پلن والی لري.

## د قره بايي لرغوني سيمه:

څه چې په يوناني فرهنګ او ثقافت کې مطالعه شوي او ددې فرهنګ ښېلګې د هندوکش په ښېلابېلو سيمو او يا د پاروپاميزاد په لويو درو او واديو کې ليدل شوي، هماغه د يونايانو او بيا د يونانو - باختريانو مېرېستونونه دي چې تر (٢٤٥ - ١٣٠) قبل الميلاد کلونو پورې دا فرهنګي ميراث دوام لري. او ددې ثقافتي طريقې يوه ځانګړنه په يونانيانو او باختريانو کې د سکندر تر راتګ وروسته د مړو ښښول دي چې عموماً مړي به تر ځانګړو مراسمو وروسته د خومانو په منځ کې په (٨-٥-k) ديا متر يا (١, ٥٠) متره لوړوالي او د خولې (٥٠) سانتي مترو په پراخوالی په اندازو په تيکر کې چې بهرنۍ سطحه به د ځينو يوناني موميايي او د ځينو په سينګاريده، کېښودل کېدل او هغه به يې په آزاده هوا کې د يو پوړيزو او څو پوړيزو کورونو او خونو په منځ کې سمول او د هغه مړي تهول تبر وياړونه به يې په تختتو باندې کېندل. نوموړې لرغوني سيمه د لرغونپېژندنې د مطالعاتو له مخې څو طبقې جوړښت لري. د نوموړو خمونو د ليدو په پام کې نيولو سره چې په منځ کې يې د انسان اسکليټ وي او سرونه يې په ګچو پوښل شوي وي، د نوموړې سيمې د جوړښت په دوو دريو طبقو کې دا ښېلګې موندل کېږي. د لرغونپېژندنې د مطالعې له مخې داسې سيمې او د تاريخ د تيورۍ څېړنې به د لرغونپېژندنې په اثبات او عمل کې د ارزښت او ډېرو څېړنو وړ وي.

د قره بابې لرغونې سیمه په امام صاحب کې پرته ده او د شهروان له مربوطاتو څخه شمېرل کېږي.

## د چیم قرغان لرغونې سیمه:

د چیم قرغان لرغونې سیمه د امام صاحب د شهروان او د امام صاحب بقهار د سیمو ترمنځ پرته ده او د کفلاتون له سیمې څخه (۳) کیلومتره لودیځ لور ته واقع لري د یونانو - باختري دورې د نورو ساختماني پلان گذاریو پر عکس د چیم قرغان د لرغونې سیمې د موقعیت او جوړونې طرز تقریباً بیضوي ډوله دی. چې یو بل ته مخامخ دوه ورونه، (۱۲) تقریباً گرد ډوله او په بشپړ ډول سیمه بیز برجونه او په شمال لودیځ کې یوه مرکزي ودانۍ لري. له اکسوس یا آمو څخه تر یوه کیلومتره زیاته لرې نه ده. د هغو مطالعاتو له مخې چې سرسره شول دا سیمه د کوشانیانو په دورې پورې اړه لري او ښایي چې د لویو کوشانیانو د سیمه بیز واکمن پوځي قرارگاه او استوگنځای وي.

نو له دې امله د هغو پراخو مطالعاتو په پام کې نیولو سره چې د هېواد په شمال کې ترسره شوي او کولای شي چې د تاریخي او تر تاریخ دمخه دورې په اړه معلومات راکړي، او په راتلونکي کې د افغانستان د لرغونپېژندنې څېړنیزې څانگې او یا تړون کوونکي بهرنیان تر ټاکلو شرایطو لاندې په دې سیمو کې خپل عملي او نشراتي کار پرمخ بوځي، نو باوري ده چې تر ټولو شتمن آسیایي تاریخ او فرهنگ به له هره اړخه لمس شوی او په فرد پورې تړلی وي. ځکه نو د دې سیمو پېژندنه په لاندې توگه پیلو. دا سیمې تر اوسه د هېواد د لرغونو سیمو په اطلس کې هیڅ نه دي لیکل شوي او د لومړي ځل لپاره په گوته کېږي.

**۱- د برزنګي لرغونې سيمه:** د برزنګي کلي په کوشاني تمدن پورې اړه لري. (۲۹) متره لوړوالی، (۲۱) متره پراخوالی او (۵۸) متره اوږدوالی لري. کښتنۍ طبقه يې تر اسلام د مخه تمدن او پورتنۍ طبقې يې په اسلامي دوره پورې اړه لري. ترلاسه شوي تيکرونه يې (۲۵) سانتي متره پراخه خوله لري او د (k-۵) له ډول څخه دي.

**۲- د برخان غونډۍ، لرغونې سيمه:** کوشانی - اسلامي دوره لوړوالی (٤۰۰) متره اوږدوالی (٤۰۰۰) متره او پراخوالی (۱٦۰۰) متره.

**۳- د خاتون کلا لرغوني سيمه:** د آمو سيند په غاړه پرته ده او په باختري - کوشاني تمدن پورې اړه لري.

**٤- نغارې غونډۍ:** دا سيمه د تالقانو د نوي ښار د شمال ختيځ په (۳) کيلومترۍ کې پرته ده. په کوشاني - اسلامي دورې پورې اړه لري. لوړوالی يې (٤۰۰) متره، اوږدوالی يې (٦۰۰۰) او پراخوالی يې (۸۰۰) متره دی.

**۵- د شاه محمود غونډۍ:** په نامه لرغونې سيمه په کوشاني تمدن پورې اړه لري. دا هکی ډوله پښنډيو په لرلو د کوشانی - باختری ګډ هنر بريښي. لوړوالی يې (۱۸۰۰) متره، پراخوالی يې (۱٤۰۰) متره او اوږدوالی يې (۱۲۰۰۰) متره دی. دا سيمه د کرکيلې د ځمکو په منځ کې پرته ده.

**٦- د چپرکلی:** همدا ډول آقتاش غونډۍ، (ببش باتور)، (ختيان کلی)، (برزنګي افغان)، برهان بای غونډۍ، قراول غونډۍ، تيپه ء سيد غونډۍ، (نغاره) او نور لرغونې سيمې.

**۷- د پچير او اګام لرغونې سيمه:** د ننګرهار ولايت د اوسنۍ هډې په سويل کې پرته ده. په کوشاني دورې او د سرواستي وادين ښوونځي د مهاياني

طریقی په (٣-٤) قبل المیلاد پېړۍ پورې اړه لري.

**٨- د نیکایانیسا لرغونې سیمه:** د لغمان په شمال لودیغ کې د نیکایانیسا لرغونې سیمه چې لوی سکندر هلته د یوناني الهې آتنه په نامه قرباني وکړه.

**٩- د بامیانو لرغونې سیمه:** د بامیانو د (٥٥) متره او (٣٨) متره مجسمو د شمال ختیځ لرغونې سیمه د شاهي معبدونو په نامه په کوشانی منځنۍ دورې او د مها سنګیکاس (Maha Sangikas) ښوونځي په بودایي طریقې پور اړه لري.

**١٠- د یمچک لرغونې سیمه:** د جوزجان د ښار د مرکز د شمال په پنځه کیلومترۍ کې د طلا تیپه (غونډۍ) څنګ ته د یمچک لرغونې سیمه په کوشاني دورې پورې اړونده ده.

**١١- د خوات ورد ک لرغونې سیمه:** دا سیمه د بودایي مهاسنګیکاس ښوونځي له ډیرو مهمو سیمو څخه وه او د دې ځای مشهور ډبرلیک د هویشکا د واکمنۍ د (٥١) کال وروستۍ لړۍ روښانوي.

**١٢- د کندهار ښار لرغونې سیمه:**

په پخوانیو متونو کې دا ښار د (هیراکوتیس) په نامه او یونانیانو د (اراخوزیا) په نامه یاده کړې ده. د پخسې او اومې خښتې لوی دېوالونه یې د پارتي دورې یو ډول تخنیک دی. او د دې سیمې لرغوني تیکرونه د یونانو - پارتي دورې ښکارندوی دي چې د علمي لرغونپېژندنې د پاملرنې او څېړنې وړ دي.

**١٣- د بغلان - سمنګان د رباتک لرغونې سیمه:** پخپله ربات د بلخ او د

آمو سیند راپورې خوا د ورېښمو د لارې په اوږدو کې د یوځای کېدو سیمه ده. کله چې به کاروانونه بامیانو او سویلي سیمو ته راکښته کېدل نو دا مهم او باارزښته ځای وو. (۲۳) کرښېز آهکي ډبرلیک ترې کشف شو چې په آریایي (دري) ژبه او شکسته یوناني رسم الخط په هند کې د سکیتا (Sakita)، کوزامبي او سري چمپا د فتحې په ویاړ د کوشاني ځواکمن امپراتور کنشکا د واکمنۍ په لومړي کال کښل شوی دی. دا سیمه د لرغونتابه او پخوانیتابه له مخې په قوي اټکل د سره ء کوتل تر معبد یا د اور لمانځنې تر قصر ډېره ارزښتمنه ده. که په دې سیمه کې د عملي څېړنو او اکتشافاتو په مخ کې خنډونه رامنځ ته شي، نو لرغوني آثار به د دلالانو په وسیله په یقیني ډول له لاسه ووځي. تر یوناني مېشتي ښار ګوتې آی خانم وروسته به دویمه لرغونی سیمه وي.

**١٤ - د جمشید تخت ارزښتمنه آبده او لرغوني سیمه:** په جمشید تخت پورې د اړوندو سیمو او تاریخي آبدې په اړه له لرغوني او تاریخي پلوه تر اوسه ژورې او هر اړخیزې څېړنې نه دي شوي. دا تاریخي آبده د لوګر د خروار په مربوطاتو کې د څرخ او خروار ولسوالیو د لارې په اوږدو کې د لوړ غره پر سر پرته ده چې د برهمني شاهانو د سوناګر یا طلایي کلا مشهور معبد هم ورسره د نوموړي غره په پراخوالي کې موازي پروت دی. د پاملرنې وړ خبره دا ده چې د جمشید تخت ودانۍ هماغسې چې د کوشانیانو وروستیو پاچاهانو، چې بېلابېلې سیمې یې تر خپلو سیمه ییزو حکومتونو لاندې راوستې وې او د ودانیو بېلګې یې په شمالي سیمو لکه لرغوني بلخ او د لبرژین غونډۍ کې لیدل شوي، جوړې شوي دي.

**۱۵- د ننګرهار د للمې او شاهي کوټ او (حصار شاهي) لرغونې سیمه:**

للمه چې د اوسنۍ هډې یا لرغونې هیلوی په سویلي او اره کې پرته ده. د پچیر او آګام او د لویې غونډۍ، کافرتوپ - لوی توپ او غونډۍ کلي د لرغونو سیمو ترمنځ د کاسې په څېر پرته ده. یوازې یوه برخه یې څو کاله پخوا په مقدماتي ډول د جاپانی لرغونپېژندونکیو له خوا وکیندل شوه. هغه څه چې ددې سیمې او د شاهي کوټ د تاریخ او فرهنګ د روښانتولو لپاره ورته اړتیا ده. تر اوسه د لرغونپېژندنې هیڅ ډلې لاس نه دی وروړی.

په داسې حال کې چې د ګندهارا د رنسانس تر ټولو ښه طریقه پر هډې او درونتې سربیره باید په دې دوو سیمو کې ولټول شي. باید یادونه وشي چې د ارزښت او څېړنې وړ سیمې پورته در وپېژندل شوې خو د هغو سیمو نومونه یاد نه شول چې پخوا تر پلټنو لاندې نیول شوې وې.

## تر ټولو مشهور منقول او غیر منقول آثار:

مخکې له دې چې د منقولو او غیر منقولو آثارو په برخه کې څه ووایو، باید ومنل شي چې که د خپل لرغوني او بابرمه هېواد ټول لاس ته راغلی آثار ولیکو نو له زرګونو پنډو کتابونو او مجلو څخه به واوړي. خو هڅه مې کړې چې د هیواد تر ټولو نادرې او نایابې بېلګې او نمونې یوه یوه ښه دروپېژنم.

## تر اسلام د مخه او د اسلامي دورې غیر منقول لرغوني آثار او یادګارونه:

په دې بحث کې په ځانګړي ډول دوه ښکلي او بابرمه آثار معرفي کوو چې

د اسلامي دورې د بې سیاله معمارانو، حکاکانو او طراحانو د هنرمندۍ او نوښتګرۍ زېږنده ده او هغه یو هم د غور ولایت د جام (٦١) متره مینار او بل د هرات جامع جومات دی.

## د غور یا د جام مینار:

د جام مینار د سلطان غیاث الدین محمد بن سام له خوا په (١١٦٣-١٢٠٢م) چې له (٥٤٢هـ) سره سمون خوري، جوړ شوی دی. دغه مینار د افغانستان په منځ کې د بحر له سطحې څخه (١٢٠٠) متره لوړ د دوو نریو درو په ګډونځای کې د همدغو درو د سیند غاړې ته ولاړ دی. او د (٢٣٠٠) مترو په لوړوالی ترې د غرونو لړۍ راتاو شوی ده. د جوړښت توکی یې پخه خښته، چونه یې او ګچې مرکبات دي چې د منار په ردو کې کارول شوي. هندسي جوړښت او راوتلو پنجره یې سینګارونو د دغه مینار تینګښت او برم ته تلپاتې والی بخښلی دی. د مینار د منځ کاشي رنګه سینګارونو په ځانګړي ډول ابې د دغه مینار ښکلا او ځلا ته ډېر اعتبار بخښلی دی. د دغه مینار په څنډو په ډېر مهارت سره کوفي لیکلو نه کښل شوي د دغه مینار له دریم پوړ څخه تر آخره پورې یو پله یې خو کلکې مارپیچ ډوله زرینې جوړې شوی چې د ننني فشار یې له یوې نقطې څخه د محوري میلې په وسیله چې زینو پخپله په طبیعي توګه رامنځ ته کړی، د ناڅاپي پېښو پر مهال ویشل کېږي او د مینار د ژغورنې لامل ګرځي. دا مینار د هغه برم او پرتم له امله چې لري یې فکر کوم د خپل میلان په پای کې (٥، ٢) ثانیې کوږ شوی دی او د نړیوال فرهنګي مرکز یعنې یونسکو لخوا په نړیوالو فرهنګي میراثونو کې منل شوی دی.

## د هرات تاریخي جومات:

د حدود العالم په کتاب کې چې د (۳۷۲هـ ق) په شاوخوا کې لیکل شوی دي، یادونه شوې، چې (هری لوی ښار او ښار گوتې یې سخت پایدار دي. په هغو کې روانې اوبه هم شته د دې ښار جامع جومات تر ټولو ښه ودان دی) هغه د ۱هرات آثار) په کتاب کې لیکلي [چې د اسلام تر نېکمرغه بعثت څخه د مخه همدلته (د هرات جامع مزگت) د بېلابېلو د ینونو عام معبد و. په هر ډول هغه څه چې د تېموري دورې له پاتې متونو څخه جوتېږي دا دي چې د دې جومات د بنسټ ډبره د سلطان غیاث الدین بن سام شنسبي غوري په وسیله ایښودی شوې ده او په (۵۸۰هـ ل) کې چې له (۱۲۰۱م) سره سمون خوري، نوموړی سلطان دا جومات د امام فخرالدین رازی د وعظ او مناظرو لپاره د لرگین سوی جومات په کنډوالو جوړول پیل کړل. د (خلاصة الاخبار) د مؤلف د لیکنې له مخې سلطان غیاث الدین محمد د دغه مبارک ځای ودانی بشپړه کړه. د آل تیمور په دوره کې لومړی ځل شاهرخ میرزا هغه ترمیم کړ چې د هغه نوم د جومات په یوه تاخچه لیکل شوی دی. د مسلمانو مؤرخینو د لیکنو او روایاتو له مخې د چنگېز د یرغلونو پر مهال دې ودانۍ زیات زیانونه لیدلي او ویجاړه شوې ده. ملک غیاث الدین کرت او بیا ملک معزالدین حسین هغه ترمیم کړې او رغاولې ده. د جومات عمومي جوله، د دې ودانۍ ډول او سبک له ښکلو کاشي کاري او هندسي نقاشي سینگارونو سره، تېموري هنر ته ورته جوړه شوې ده. د دې جومات د تېموري دورې په زړه پورې لیکنې او ښکلې نقشې د امیرعلي شېر نوايي په فرمایش او د مشهور خواجه میرک تر نظر لاندې ترسره شوي دي. دا بابرمه تاریخي ودانۍ (٤٦٠) گومبزې، (١٣٠) تاخچې او

(٤٤٤) لویې ستنې لري. او د معمارۍ، مهندسۍ او کاشي کارۍ د لوړ هنر له سیستم څخه برخمن دی. د ساختماني پلان او د معمارۍ له مخې دې جومات ته ورته ودانۍ د ازبکستان په بخارا او سمرقند او په ځانګړي ډول د الغ بېګ په زیارت کې لیدل کېږي.

## د بلخ نهه ګومبزې جومات یا پیاده حج:

د هېواد په شمال کې د مسلمانانو لومړنۍ عبادت ځای، یا لومړنۍ اسلامي ودانۍ ده. د اسلامي هنر څېړونکي د هغې د جوړېدو نېټه د (۱۰۷هـ) چې له (۷۲۵م) سره سمون خوري یعنې د اتمې عیسوي پېړۍ لومړۍ نیمایي او (۱۷۸هـ) کلونو ترمنځ چې له (۷۹٤م) سره سمون خوري، ښودلې ده. دا جومات نهه ګومبزې او شپږ لویې ستنې لري. د جوړښت او ښکلا ډول یې په بشپړه توګه ځایي او سیمه ییز هنري میراث دی چې ساساني او باختري هنري اغېز پکې نغښتی دی.

## د مرنجان غونډۍ:

د آی خانم تر ښار ګوتې او د ننګرهار د هډې تر اوښ غونډۍ وروسته له مهمو او مشهورو آبداتو څخه یوه هماغه د مرنجان غونډۍ ده. دا لرغونی او تاریخي ځای چې ډېره برخه یې آسمایی او شیر دروازې د غرګوټو ترمنځ پرته ده، په ختیزه څنډه کې یې د مرنجان لوی بودایي معبد پروت دی. د مرنجان بودایي معبد چې د کابل سیند شمالي خواته پروت دی یوه لویه مرکزي ستوپه لري چې په پوښه یې معمارۍ او ساختماني طریقه جوړ شوی. او (۱۱) ځله ترمیم او بیا رغېدلی دی. ددې مرکزي ستوپې شاوخوا نورې کوچنۍ ستوپې شته. رواقونه او د راهبانو استوګنځایونه په سمتریک ډول نه، بلکې د معبد

د ښنډو په ډول اتکل کيږي. ددې معبد کيندنه په (۱۹۳۳م) کې چې له (۱۳۱۲) لمريز سره سمون خوري د فرانسوي لرغونپوه په وسيله ترسره شوه. ددې معبد لومړنی جوړښت مستطيل شکله، (۷۸۰) په (۳۰ , ۱۲) متره کې دی چې د جوړښت توکی يې اومه مربعي (۵۰ x ۵۰) سانتي متره خښتې ده. منظم برجونه لري چې بنسټونه يې له سيندنيو تيږو جوړ شوي دي. او نيمه ليندېز رواقونه لري. ددې کيندنو زېرنده له اومې ختې ښخه جوړ په بېلابېلو رنګونو او تاج ښکلې شوې د بود يستوا دوه په زړه پورې مجسمې دي. د کوشانو - ساساني محدبو او مقعرو طلايي سکو مجموعه چې په يوه سکه يې د بهرام کوشانشاه نوم کښل شوی، ترې ترلاسه شوې. او پر دې سربېره د فيروز او ساساني هرمز سکې هم په دې مجموعه کې شته. همدا رنګه د سکو يوه بله مجموعه هم لاس ته راغله چې مواد يې عمدتاً سپين زردي او شمېر يې (۳۷۳) ته رسيږي. (۳۲۸) عدده يې په دويم ساساني شاهپور، (۲٤) يې په دويم اردشېر او (۱۱) عدده يې په دريم شاهپور پورې اړه لري. دا معبد د دويم ځل لپاره د افغاني لرغونپېژندونکيو په وسيله په (۱۳۶۲) لمريز کې وکيندل شو او د مرکزي ستوپې له منځه د تبرکاتو صندوقچه راوويستل شوه چې يو شمېر سکې يې درلودې او يو ډبر ليک هم ورسره و چې ددې معبد د ودانېدو نېټه يې څرګندوله. ددې معبد نورې مهمې برخې تر اوسه نه دي کيندل شوي او هيله کيږي چې له هره پلوه په دقيق او علمي ډول پاتې برخې د لرغونپېژندنې د بنسټونو او د کيندنو له اصولو سره سمې وپلټل او د خاورو له ډېريو لرغوني توکي ترلاسه او زموږ پر لرغوني زرين تاريخ د زياتونو په برخه کې مرسته وکړي.

## آی خانم:

یوناني مېشتی ښکلی ښارګوټی آی خانم یا ماه خانم د اکسوس سیند په غاړه یعنی د آمو او کوکچې په ګډونځای کې پروت دی. تر میلاده (۲۵۰) کاله شاوخوا مخکې کله چې د یودوتس د باختر واکمن شو او د وسلو سیدیانو واکمني یې له منځه یوړه او خپله واکمني یې د پاروپامیزاد اوسني هندوکش سویل خوا ته وغځوله، نو د آمو د شمال د کېږدۍ مېشتو له خوا دا واکمني ګواښل کېده. پطلیموس (Potolomayas) جغرافیه لیکونکي د اکسوس د سکندریې نوم یانې د آمو سیند سکندریه لیکلې ده. ښايي یوناني مېشتی ښارګوټی آی خانم مشهوره سکندریه وي. کله چې مقدوني سکندر د باختر ځمکې او سیمې او په ماوراء النهر کې سغدیان ونیول، نو د سکندریو په نامه یې ښارګوټي جوړ کړل. د یونانیانو تر وروستۍ لړۍ یعنی په سویل کې هرمایوس او په شمال ختیځ کې تر هیلوکلس وروسته د پنجاب او کشمیر یا (بسکواپېرا) کېږدۍ مېشتو په (۱۳۰ ق م) کې په یو لوی یرغل لاس پورې کړ او په شمال کې یې د یونانیانو واکمني له منځه یوړه. نو دا ښارګوټی او شاوخوا سیمه یې یو جغرافیایي واحد و، چې د آمو په ګډون ځای کې د کرکیلې له شتمنۍ څخه برخمن و. د کوکچې له سیند څخه ښارګوټي ته د اوبه خور او ویالو طریقه د یونانیانو د اټکل او تجزیې سیستم و. د ای خانم ښارګوټی په دریو مساوي برخو ویشل شوی:

د ښارګوټی قصر چې درې مربع ډوله برجونه لري. قصر لویې مرمري ډبرینې ستنې لري چې برغولي یې د لرغوني یونان د (کورنتې) د برغولو په څېر د ګلونو او پاڼو سینګارونه لري. دې قصر کې کتابتون، لوبغالی (سپورتي

جمنازیوم) او تیاتر شته او په منځنۍ برخه کې یې د ښار د بنسټ ایښودونکي یعنې کې یې اس (Keuias) قبر دی. تیاتر چې په نیمه قوسي ډول جوړ دی د اومې خښتې دندانې لري. په دوو دورو کې ترمیم شوی یعنی لومړی یرغل چې کېدی مېشتو ته ډېر زیانونه رسېدلي وو، د هغوی جسدونه په همدې تیاتر کې خښ شول. دویم یرغل د ښارګوټي ډېرې برخې ړنګې کړې چې په کنډوالو کې یې کېږدۍ مېشتي واوسېدل. او ددې ښار د ودانیو له پاتې برخو څخه یې ګټه واخیسته. موسیقي، ضرابخانه، د لاجوردو او نورو قیمتي ډبرو حکاکي او ډبرو ښو ختینو لوښو جوړول په دې ښارګوټي کې رواج وو. د دلف ښار مشهوره وجیزه چې د اهکو په تیږه په یوناني لیک دود کیندل شوې او له ښار څخه تر لاسه شوه په هغې کې راغلي دي: «په کوچینیوالي کې باادبه اوسه! په ځوانۍ کې ځان وساته! په بوډاتوب کې ښه ناصح اوسه! په مړینه کې مه غمژن کېږه.» د آی خانم پلټنه له (۱۹٦٤-۱۹۷۷ م) پورې د شلومبرژه په وسیله پیل شوه او پول برنارد فرانسوي ورته ادامه ورکړه. په دې پلټنو کې افغان لرغونپېژندونکیو هم ونډه درلوده.

## د سره ء کوتل یا د بګولانګو مهادژ:

سرخ کوتل د کابل د شمال په (۲۵۰) کیلومترۍ کې د پلخمري - مزارشریف د پخوانۍ لارې په اوږدو کې پروت دی. د اور لمانځنې دا لوی معبد او د خدایانو معبد چې د ځواکمن کوشاني امپراتور کنشکا په وسیله یې بنسټ ایښودل شوی، د هغه د زوی هویشکا په وخت کې بیا ترمیم شوی او د بیا رونق لپاره یې د (نوکومزوک) له خوا نوی کوهي کیندل شوی دی. ددې مهادژ کیندنه په (۱۹۵۲ م) کې چې له (۱۳۳۱) لمریز سره سمون خوري د

ډاکټر شلومبرژه فرانسوي لرغونپېژندونکي په وسیله ترسره شوې ده. تولتسو او پوزانیاس د سره کوتل دا مهادژ پرسیکو، سیمه ییزو (فارسي) او د اناتولیې ودانیو ته ورته ګڼي. د سره کوتل معبد دوه برخې لري یو مذبح او بل نغری یا ایره تون. د جوړښت له مخې هم په اوږدو د ختیځ او لودیځ په لوریو په دوو برخو ویشل شوی یعنی نغری او د مذبح وستل (ډبه - صفه) او یا د مذبح سکوی ځای چې یو بل ډبرین وستل ترې راچاپېر شوی او درې رواقونه لري چې د هر یو پلنوالی (۵) متره او د دېوال پلنوالی (٦) مترو ته رسېږي.

نغري يې په څلورو ستنو چې پښندۍ يې د يونانو - باختري معمارۍ په طريقه صيقل او توږل شوي ددې پلاتفورم په څلورو کونجونو کې ځای پر ځای شوي. ددې مذبح او نغرو چاپېره له مربع ډوله برجونو سره دېوالونه جوړ شوي او عمومي ور يې څلورو پوړونو ته مخامخ چې د تیږو د زینو په وسیله سره نښتي وو، ګڼل کېدای شي. یو شمېر مجسمې چې د کوشاني پاچاهانو او شازیو (شهزادګانو) څېرې یې ښودې په دې مهادژ کې ځای پر ځای شوې وې، چې عموماً له آهکي ډبرو (lime stone) جوړې شوې او د اتنوګرافي له مخې هغو په بشپړ ډول باختري سیمه ییز شکل او عرف درلود. نو ځکه د سره ء کوتل د جوړښت پلان د یونانو - باختري دورې له ټولو لرغونو آبداتو سره زښت ډېر توپیر لري. د سره کوتل د مجسمه جوړونې هنري اغېز د پخوانی هند د ماتهواری پر مشهورو مجسمو او ودانیو په بشپړه توګه څرګند دی. د بګولانګو په سره کوتل کې د اور سوځونې یوه قوي دوره لیدل کېږي او احتمالاً په (۲٤٠) میلادي کې د لومړی ساساني شاهپور د یرغلونو په وخت کې، چې په شمال یې لاس بري تېرېدونکې بڼه درلوده، رامنځ ته شوې ده. پروفیسور

فوشمن فرانسوي پوه د سره کوتل معبد د اور لمانځنې معبد نه ګڼي. پروفیسور ډاکټر زمریالی طرزي، د هېواد مشهور لرغونپوه عقیده لري چې سور کوتل د کوشانیانو په دوره کې د سیمه ییز هنر او د ګندهارا د هنر یوه ګډه بڼه ده چې مثال یې د ماتهورا مشهور معبد یادولای شو. د سره ء کوتل (۲۵) کرښیز ډبرلیک چې په باختري ژبه او یوناني رسم الخط کیندل شوی. په هغه کې د سوځیدنې (۳۱) کال یاد شوی او یادونه شوی، څرنګه چې وچکالی شوه او خدایان (اندرا - بو) یعنې هغه ځای ته چې اوبه هلته زېرمه دي، لاړل او نوکونزوک کوهي وکینده چې خدایان راوګرځي او عبادت دوام ولري. دا ډبرلیک د مهرامان په وسیله لیکل او کیندل شوی دی او ژبه یې دري باختري ګڼلای شو.

## د لرغونپېژندنې د مهمو تاریخي اسنادو په توګه تر ټولو مهم منقول آثار:

هغه تر ټولو مهم آثار چې تر اوسه د افغانستان د کوشانیانو د مهمې او پېړیزې امپراتورۍ او ښیرازه دورې د رښتینې تاریخ او برم د ټاکلو په برخه کې تر لاسه شوي، دوه درانه او ارزښتمن ډبر لیکونه دي چې د افغانستان د کوشانیانو د لرۍ د تمدن او فرهنګ لویې مبهمې او پټې خواوې یې روښانه او ددې دورې زرین تاریخ یې ګټور او په فرد پورې تړلی دی. دا اسناد د رباتک او سره ء کوتل هغه ډبرلیکونه دي، چې د کوشاني تاریخ د متن یوه برخه یې تغییر کړه، ځکه نو اړینه ده چې دغه دوه مهم تاریخي سندونه په لنډه توګه وپېژندای شي.

## ۱ - د رباتک ډبرليک:

دا ډبرليک په (۱۹۹۳) ميلادي کې چې له ۱۳۶۲ هجري لمريز سره سمون خوري د بغلان - سمنگان د رباتک له سيمې څخه د تمپورتي (Timporte) په نامه د يو کس له خوا کشف شو او يليم سيميز نيکولای لندني ليک پېژندونکي ولوست. دا ډبرليک (۹۱) سانتي متره اوږد ۰ (٤۱) سانتي متره پلن او (۲۷) سانتي متره پنډ دی. مواد يې آهکي تيږه ده. (۲۳) کرښې لري په اري ژبه او شکسته يوناني ليک دود کښل شوی دی. متن يې د پخواني هند د کشاتريايي پاچاهانو د ښارونو سکيتا، سري چمپا، کوازمبې، يهوديه يا پتالی پوترا پلازمينې د فتحې په وياړ ليکل شوې په عامه لاره په احتمالي ډول د رباتک د معبد په وره کې اينبودی شوی و.

دا ډبرليک سربېره پر دې چې څرگندوي چې کنشکا د کوشاني لړۍ بنسټ ينبودونکي، د کجولا کدفيزس څلورم وروستی کس دی او ويماتکشا يا ويماتکتو د ويماکدفيزس پلار دی، نه ورور. ځينو پوهانو کنشکا د ويما کدفيزس ورور گاڼه او ځينو نورو وروستی لړۍ او بله کورنۍ گڼله. په دې ډبرليک کې د (اري) او اوسنۍ دري ژبې د اصيلو لغاتو ريښې په څرگنده ليدل کېږي لکه: شاه، فر، کنار، رنگ او نور.

دا ډبرليک اوس کابل موزيم کې شته. ډبرليک د کنشکا د واکمنۍ له لومړي کال سره اړه لري.

## ۲ - د سره ء کوتل ارزښتمن ډبرليک:

دا ډبرليک په (۱۹۵۱ -۱۹۵۷م) کال کې د سره ء کوتل د اور لمانځنې د معبد د ودانۍ د کيندلو پر مهال ترلاسه شو. ډبرليک بيا هم په (اری) ژبه دی او (۲۵) کرښې لري چې په يوناني شکسته رسم الخط دی. اوږدوالی يې

( ۱۲۰ ) سانتی متر ، پسور یې ( ۸۱ ) سانتی متره او پنډوالی یې ( ۱۵ ) سانتی متره دی. لیکنه د آهکو په تیږه کیندل شوې ده. د سره ء کوتل د ډبرلیک منځپانگه په لنډه توگه لیکو:

« دا دبگولانگو د نېکمرغه کانیشکا مهادژ دی، چې هغه لوی پاچا ، کنشکا جوړ کړ. څرنگه چې د معبد اوبه ورکې شوې نو مهادژ وچ شو ، د اور نېک رب النوع وځنډېد. خدایان (اندرا - بو) ته لاړل [ هغه ځای چې اوبه ډېرې دي. ]

(نوکونزک) او (کنارنگ) د روح بخښونکی خدای په امر کوهي وکینده ء. که چېرته خدایان تباه نه شي او مهادژ پرېنږدي ... زه مهربان یم، زه مهره مان برزمهرپور یم. »

دا ډبرلیک په هغه وخت کې د کوشاني څلورمې لړۍ سیاسي - فرهنگي او ټولنیزه وضع بیانوي.

## د خوات وردگ مشهور ډبرلیک:

په هېواد کې د لویو او منځنیو کوشانیانو په وخت کې چې له خروشتي لیک دود سره هم مهاله له یوناني لیکدود څخه هم گټه اخیستل کېده، له لرغونو ډبرلیکونو څخه یو هم د خوات وردک ډبرلیک دی چې د تیږې د لوی لوښي په منځ کې د (۱۹۳۸-۱۹۳۹م) مو کلونو ترمنځ چې له (۱۳۱۸) لمریز سره سمون خوري، د چارل مسون په وسیله د کابل د لویدیځ په (۳۰) میلۍ کې وموندل شو. دا متن د کنشکا زوی هویشکا پاچا ته د (۱۶۲-۱۶۹م) په شاوخوا کې لیکل شوی دی. متن یې داسې دی:

« په (۵۱) کال د ارتمي سیوس د میاشتې په (۱۵) مه کم گولیه قلفه

اوگره مریکه په خوات کې دېره شوه. او د ښاغلي ساکیاموني د یادگار وداني يې په ویهاره (معبد) او د گره مریکه يې په یوه ستوپه کې کېښود ... هغه چې په دې نړۍ کې دي د ځمکې له تله تر آسمانه ... او دا ویهاره دې د مهاسانگیهکه د ښوونکیو په منلو کې وي. »

ارتمي سیوس یوناني میاشت د یوناني کال پنځمه میاشت ده.

## د کندهار ډبرلیک په یوناني او آرامي لیکدود سره:

په تیږه یوناني او آرامي لیکنه چې د کندهار د لرغوني یا پخواني ښار په وره کې د سرک په غاړه د غره په یوه پلنه تیږه کیندل شوې ده. په (۱۹۵۸م) کې چې له (۱۳۳۷) لمریز سره سمون خوري د خاورو له طبقو څخه پاکه شوه. اوږدوالی يې (۵۵) سانتي متره او پسور يې (۴۵-۴۸) سانتي متره دی. یوناني لیکدود يې (۵, ۱۳) کرښې او آرامي يې چې تر یوناني لیک لاندې دی (۵, ۷) کرښې دي.

د متن مطالب عموماً د آشوکا یا د هند د موریایي امپراتور (پیوداسا) د دورې اخلاقي نصیحتونه او وجیزې دي چې تر میلاد (۲۵۰) کاله د مخه په شمال او سویل کې د مبلغینو او راهبانو په وسیله د هیواد د سویل د غرونو په پلنو او لویو تیږو کیندل شوي دي. دا ډبرلیک د آشوکا د بودایي کېدو د لسم کال استازیتوب کوي. لنډ متن يې داسې دی:

« د لسو کالو په پای کې پیوداسا پاچا انسانانو ته د دیانت اصول وښودل ... او پاچا يې په ټوله نړۍ کې نېکمرغه کړ. د ساکښانو له وژنو يې ځان وژغوره او ټول د بوډاگانو او پلرونو منونکي شول. »

درېيم څپرکی:

# جنګ او د افغانستان د لرغونو آثارو برخلیک

په افغانستان کې د دوولسیزو د جنګ په اوږدو کې د لرغونو آثارو او سیمو له منځه تګ یو شمېر بېلابېل لاملونه لري. تر ټولو لوی فرهنګي غنیمتونه او تاریخي لرغونې پدیدې چې تقریباً زموږ له لاسه ووتې په دوو برخو يې ویشلای شو.

۱- د افراطي ډلو تعصبات چې د عقیدې او مفکورې له مخې د لرغوني او نړیوال فرهنګ د رابرسېره کېدلو مخالف وو. لکه چې په (۱۳۶۹-۱۳۷۰) کلونو کې د سخت دریځو بنسټپالو په وسیله د سر واستي وادین بودایي معبد او د ګندهارا د رنسانس هنر چې د افغان لرغونپېژندونکیو په وسیله د ننګرهار په اوښ غونډۍ یا شتاویرای کې د (۱٤) ځلو کیندنو په اوږدو کې وموندل شو او د پروفیسور ډاکټر طرزي د نظر له مخې ګریډراکوتا (Gridrakuta) چې په ختیځ په ځانګړي ډول د ګندهارا په سیمه کې يې اصلاً ساری نه درلود، په یو ناڅاپي یرغل نه یوازې په دې معبد کې پراته آثار او مجسمې چې د هلنستیک هنر او پیرګمون ښوونځي اغېز پکې جوت و، مات شول، بلکې ټول معبد يې وسوځاوه. دا له اوومې پېړۍ څخه تر شلمې میلادي پېړۍ پورې د تیاره فکرو له خوا درېیم ځل اوراچونه ده چې په دې سیمه کې رامنځ ته کېږي.

د افغانستان پر لرغوني فرهنګ چې د دې خاورې له نیکونو راپاتې میراث

شمېرل کېږي، د لومړني يرغل پيل د ننګرهار د هماغې هډې پر سيمه وشو. ورپسې په خپل منځو ګوندي جګړو کې هغه موزيم چې د ننګرهار په سراج العمارت کې جوړ شوی او ننداري ته وړاندې شوی و، د هغه د ډيپو په ګډون ولوټل شو. آثار يې چې تر ټولو غوره ستوکي مجسمې او ساختماني هنري ښکلې ټوټې پکې وې، ټول د افغانستان د لرغونو آثارو د دلالانو په وسيله په ډېرې چالاکۍ له هېواده ووتل.

۲- بل عامل چې د لرغونو آثارو د له منځه تګ او لبېدونې لامل وګرځېد، هماغه بهرني عوامل وو، هغو هېوادونو چې زموږ له پنځوس زره کلن تاريخ سره يې رخه درلوده. نامسوولو او ناژمنو وسله والو ډلګيو ته د پيسو په ورکولو، نه يوازې د جنګ په ډګر کې بل اور ته لرګي وراچول، بلکې د هغوی په وسيله يې د افغانستان د وګړيو فرهنګي او ثقافتي ميراثونو هم تر لاسه کړل. او د بېلابېلو نړيوالو مافيايي باندونو په وسيله د ډېرو ليرې پرتو بريدپولو له لارې بهر ته ولېږدېدل.

له دې آثارو څخه د بېلګې په توګه يو د (ويهارا) په V2 رواق پورې اړوند د بودا د مجسمې سريا د اوبن غونډۍ د سرواستي وادين معبد د راهبانو استوګنځايونه دي. د مجسمې په دريمې سترګې کې د سترو ياقوتو تيږه ځای پر ځای شوې وه. دغه مجسمه د لرغونو آثارو د نړيوالو قاچاقبرانو په وسيله وپلورل شوه.

په دې برخه کې پروفيسور ډاکټر طرزي چې اوس هم د فرانسې پوهنتون د ختيځ هنر په څانګه کې د استادۍ دنده لري، د يونسکو ټولنې ته پراخه احتجاج وکړ او افغانستان ته يې د دغه اثر د بېرته سپارلو غوښتنه وکړه.

د (۱۳۷۱) کال په غوایي کې د نجیب الله د حکومت له ړنګېدو وروسته د وخت ګوندي حکومت ته د واک د لېږد او د کابل ښار د بشپړو نیولو او د واک سیاسي ځواک د ویشنې په سر له شخړو او زورواکیو په ځانګړي ډول د دارالامان په چهاردهي او شاوخوا سیمو کې د راکټونو له توغولو او چاودنو سره هم مهاله د افغانستان د ملي موزیم ګرانبیه آثار لوټ شول چې د تر تاریخ دمخه دورو (د کندهار د منډیګک، کوردرې، د چنار ګنجشکان، تاروسار، سیستان، سرخدک او سفیدک او...) او د تاریخي دورو د تیموریان د لړۍ تر وروستیو لکه (د یوناني ښار ګوټې آی خانم، د ننګرهار د هډې، شترک او پاتیاوې، خیرخانې کنډو، د غزني د سردار غونډۍ او بګرام ګرانبیه آثار او د ځینو نورو سیمو لکه غزني آثار او ډېرې اتنوګرافیکې بېلګې او د یونانو - باختري او کوشاني دورو بېلابېلې سکې پکې شاملې وې. هغه شمېر آثار چې پاتې وو د هغه وخت د اطلاعاتو او کلتور وزارت په هلو ځلو د کابل هوټل ته په غیر مسلکي ډول په بیړه ولېږدول شول، خو په مجموع کې په هغه وخت کې ددې اړتیا وه چې داسې آثار روغ وساتل شي. وروسته د کابل موزیم د ړندو راکټونو په وسیله وسوځېد او د لرغونپېژندنې د انستیتوټ پخوانۍ ودانۍ هم ویجاړه او ړنګه او د بېلابېلو سیمو یو شمیر لرغوني آثار د هغو له جملې څخه د ننګرهار د هډې د لرغونې سیمې چې په کار و مخکې له هغې ودانۍ لیږې او په یوه خوندي ځای کې ایښودل شوي وای، ددې جنګ خوراک او ټول لوټ شول.

او یو شمیر یې د ختینو لوښو په ګډون د خاورو تر ډېریو لاندې پاتې شول چې برخلیک یې تر اوسه هم څرګند نه دی. د ملګرو ملتونو د سرمنشي د استازي معاون ښاغلي (موریس ستوریس) هڅو په (۱۳۷۲-۱۳۷۳ هـ ش) کې ددې

لاره اواره کړه چې پاتې آثار وژغورل او خوندي ځای ته یوړل شي.

د غوايي تر کودتا د مخه لرغوني آثار له (۱۳۵۰۰۰) څخه ډېر وو؛ خو د جنګ تر ځوړ وروسته د لرغونپېژندنې او موزيم د کارمندانو په وسيله او د لېوالو مؤسساتو په هلو ځلو تر وروستي راجستر پورې (۳۸۷۰۰) آثارو ته رسېدل چې دقيقه او وروستۍ سرشمېرنه يې د موزيمونو د رياست له مشرتابه څخه په هغه صورت کې چې دا کار بې ترسره او د آثارو راجستريشن يې بشپړ کړي وي، ترلاسه کېدای شي.

## د جنګ اغېز او د لرغونو آثارو او سيمو له منځه تګ:

په لرغونو آثارو لومړنی بريد د (۱۳۷۱) لمريز د مرغومي په دويمه نېټه چې له (۱۹۹۲) ميلادي سره سمون خوري، ترسره شو او د اهميت وړ د ملي موزيم دوه آثار غلا شول او د (۱۳۷۲) لمريز د سختو جنګونو له امله د سوريا ډېره ښکلې او ارزښتمنه مجسمه چې له مرمرو جوړه شوې وه، او ښکلې هندو شاهي جوغه (تاج) چې د يفتلي هنر و فرهنګ اغېز پرې جوت و او په (۱۳۵۸) لمريز کې د خيرخانې له کنډو څخه لاس ته راغلې وه هم، ورکه شوه. د سوريا د مجسمې يوه بيلګه فرانسوي پروفيسور ژوزف هاکن له دې ځای څخه کشف کړې وه چې د دې مجسمې له ښکلا او برم سره يې سر نه خوړ. دې ښکلو مجسمو د يونانو - باختري، کوشاني، د کوشانو - يفتلي د وروستيو پاچاهانو او برهمنشاهانو د نورو بې بديلو مجسمو ترڅنګ د اسلامي بابرمه دورې په ځانګړي ډول د غوريانو، غزنويانو او تيموريانو د دورو خالصو آثارو د ننداريې او علمي - فرهنګي تبليغاتي خپرنو له ډګره تېغر ونغاړه.

بهرنيو دلالانو او قاچاقبرانو د کورنيو پردي پالو برېڅو په مرسته دې سوداګرۍ ته لاس راوغځاوه او له سياسي پوځي کړکېچه په ګټې اخيستنې سره

د منقولو آثارو تر لوټ تالان وروسته ملي موزیم او د ولایتونو سیمه ییز موزیمونه، لکه: هرات، فاریاب، مزار شریف، غزنی او نور لوټ او د لرغونو سیمو نامسوولانه او ناوړه کیندنې پیل شوې.

د لومړي ځل لپاره د کورنیو مزدورانو په ګومارلو سره بهرنیانو د افغانستان په ختیزو سیمو، لکه: هډه، للمه، پچیرواګام، چپرهار، حصارشاهي، کونړونو، نورستان، د سپین غره په لمنو او د سپینې شګې په سیمو برید وکړ او تر لاسه شوي آثار یې د سېلاب په څېر له ځان سره یوړل.

هډه یا هیلوی تر هغه مهاله چې هیوان څانګ په (۶۳۲م) کال کې دې سیمې ته راغی، د هنر او عقیدې د بې بدیله شتمنۍ د برم او شهرت په پای کې وه یعنی معبدونه او راهبان یې لرل او د رکود په حال کې لیدلي وو. د زر ګومبز معبد، طلایي معبد، د بودا هډوکي او د کبانو ډنډ (د مارانو له خدای ناګوپاله سره د بودا ساکیاموني او ناظرینو لکه ویشنو او نورو فریشتو ملاقات د کب په قالب کې د بودایي پیروانو په عقیده) په اړه یادښتونه لري چې د ګندهارا په هیڅ سیمه کې نه دي تر سترګو شوي او له سوات (اوډیانا) بهلول ښار، ټکسیلا، مردان، تهاریلي، بنو، مامادرې، او نورو څخه په مخکې کتار کې وو او د هډې هرې سیمې او شاوخوا غیر منقولو موزیمونو د افغان ولس د فرهنګ او ثقافت د اصالت په معرفي کولو کې زښت ډېر رول لوبولی دی.

د نړیوالو قاچاقبرانو او دلالانو زموږ د هېواد د فرهنګ او تاریخ د صلابت په چارو کې په اوږدو لاس وهنو لاس پورې کړ. د وروستۍ لسیزې په اوږدو کې د هغوی پلان داسې و چې تر (۲۰۰۵م) کال پورې باید داسې هیڅ سیمه پاتې نه شي چې نامسوولانه او خپل سرې کیندنې پکې ونه شي او آثار یې په کومازونو کې له سویلي برید پولو تېر نه شي.

په مرکز کې د خورد کابل سیمې لکه سنجد دره، یخ دره او سهاک تر برید لاندې راغله. د سیدانو تنگی، د سروبي او د ده سبز سیمې (نازوکي غونډۍ، پایتاوه، کوه صافي او بچه خاک) واړول راواړول شوې او آثار یې لوټ شول. که څه هم د طالبانو ناروا او ناقانونه واکمني او همغاړي یې پرې خبر وو، خو د نشه يي توکو ترڅنگ د لرغونو آثارو په قاچاق او وړلو کې لوړ مقامات مهمه وسیله شمېرل کېده. ځکه نو د فرهنگیانو او پلټوونکیو لپاره په دې سیمو کې د نامسوولانه پلټنو مخنیوی ناشونی و.

د خوست او پکتیا په ولایتونو کې د یو شمېر طالبانو په مرسته له منظم پلان سره سم ځینې سیمې لکه د گردېز (میرزکه) چې د سرو او سپینو زرو او برونزو تر ټولو خالص آثار او هم د اندوگریک او کوشاني د ورو یو شمېر خالصې سکې د میرزکې د چینې له ژورو څخه راوویستل او نړیوالو مافیايي بازارونو ته د پاکستان د کراچۍ بندر له لارې یوړل شوې. هغه مهال د دې مسلک د چارواکو هڅې نه محسوسېدې خو د افغاني لرغونپوه نادر رسولي د پراخه گزارش په وسیله د څه وخت لپاره د میرزکې د سیمې د پلټنو د لومړي پړاو لړ مخنیوی وشو. خو د طالبانو په دوره کې د فرهنگي آثارو او پدیدو له مخې د هغه ځای اهمیت او ارزښت لوټ شو.

پر مېرزکې سربېره بله مهمه سیمه یانې د آی خانم ښار گوتې چې د سکندر له وخته تر هر مایوس او د میناندر، د متریوس، ایوکراتید، ایوتدموس او د یودوتوس له وخته په شمال او سویل کې د کوشانیانو تر راڅرگندېدا پورې د یونانیانو استوگنځای و، د افغاني فرهنگ له لوټوونکی سېلاب سره مخامخ شوه. د هغه ځای تر ټولو خالص آثار د ځمکې له تله راوویستل او له هېواده بهر ولېږدېدل. آی خانم د تخار یا (tu-huo-lo) یا (to-ho-lo) یوه سیمه ده چې په

(۱۳۰ ق م) کې د آمو د شمالي خوا د کیږدۍ میشتو یوچیانو د یرغل له امله په کنډواله بدلېږي او د کوشانیانو تر تسلط او سمون او د کجولا کدفېزس، ویماتکشا یا ویماتکتویا هماغه (سوترمېګاس) تر واکمنۍ وروسته بل رنګ و رونق پیدا کوي او ددې (یوناني) تمدن په بنسټ د خپلې وروستۍ واکمنۍ تګلاره سموي چې د یونانو په څېر نورو سیمو ته د ویاړمن او بابرمه تاریخ د خپرېدو په بڼه راڅرګندېږي. بهرني قاچاقبران او پلټونکي د کورنیو برېښو په مرسته او دلالۍ نه یوازې د آی خانم په ښارګوټي کې، بلکې د تخار په نورو سیمو کې لکه درقد، بهارک، ظلم کلي، ینګي قلعه، دشت قلعه، شهروان، امام صاحب او دشت ارچي کې په فرهنګي تېریو لاس پورې کوي.

یوه بله لرغونې سیمې د پنجشېر او اندراب دی چې په خولو کې جبل السراج پروت دی چې د سکندر د زمانې یو مهمه پوځي قرارګاه وو. په جبل السراج کې د کلا تر اوسه پاتې نښې د سکندر موجودیت څرګندوي. په خواشینۍ سره باید ووایو چې د افغانستان لرغونپېژندنه په دې نه ده توانېدلې چې د پنجشېر دره او شاوخوا یې د لرغونو تاریخي دورو له مخې تر پرله پسې علمي څېړنو او دقیقو ارزونو لاندې ونیسي او د افغانستان د لرغونو سیمو په راجسترېشن کې اقدام وکړي. هغه پراخه شبکې چې تر اوسه په لرغونو سیمو کې پلټنې کوي، څرګنده ده چې د سیمې د مخورو ملاتړ ورسره دی. دا پخپله یو حقیقت دی چې د هېواد پالو په منطق کې یې د پټېدو ځای نه شته، او څوک چې تاریخي حقایق پټوي دا پخپله جرم دی.

## د خروار ولسوالي:

د افغانستان د فرهنګ او د افغاني خاورې د وړنګن تمدن او تاریخ د دښمنانو په لاس له قربانیانو څخه یوه هم د خروار ولسوالي ده. زه په خپل وار دوه ځله د اطلاعاتو او کلتور د اوسنی وزیر ښاغلي رهین په لارښوونه د لرغونو

سیمو د تثبیت او ارزولو لپاره هلته ورغلم. تر اسلام د مخه او د اسلامي دورې د مؤرخینو په وینا خروار د هغې کارواني لارې په اوږدو کې یوه څانګه وه چې له ویهنډ (د صوابۍ ضلعې ننی هنډ) او له هغه ځایه د کراچۍ د پتالې سره نښلېده. خروار د لمر لمانځنې د مشهور او لوی معبد سره پیوست د هغې پراخې او شنې درې په اواره کې پروت دی چې سویل خواته یې د پکتیا او غزني بریدپولې او د زرمت غرونه راتاو دي. لکه چې هیوان څانګ په اوومه میلادی پېړۍ کې د شونا یاسونا معبد یادونه کوي، هغه د (تسو - کو - تا) سیمې له مهمو ځایونو څخه ګڼي چې لوګر یا لوګرنا، غزنی او ګردېز پکې راځي، همدا ډول سوناګر یا سګاوند او شاوخوا یې (د جامع الحکایات) مؤلف محمد عوفي یې تر دریمې او څلورمې پېړۍ د لومړۍ نیمایي پورې چې د عمرو لیث صفاري او د تګین شاهانو (د افغانستان د کوشانو - یفتلي اختلاط د کوشانیانو د څلورمې کورنۍ تر ړنګېدو وروسته یې د سیمه ییزو پاچاهانو په توګه د افغانستان په شمال او سویل کې واکمني کوله، مهال دی، په څرګنده یادونه کوي.
هیوان څانګ د څو سوو معبدونو او له زرو څخه د زیاتو راهبانو یادونه کوي چې په بودایي فلسفه کې د نجات د لویې لارې یا (مهایانا) پیروان دي. په یقیني توګه چې د نومړي سیلاني دا یادونه په بشپړه توګه د خروار یا (ګرووېهار) په سیمه اطلاق کېږي. د عمرو لیث صفاري په زمانه کې یوازې د سګاوند معبد ویجاړ نه شو، بلکې په یقیني توګه د خروار بود تونونه (بت خانې) او صومعې هم ماتې او ړنګې شوې او ډېرې سیمې یې وسوځېدې. کله چې د تیراکندو د سرک د ښۍ لور د خواجه انګور له غاښې د خروار د بودایي ښار ګوتې کافرکوټ منظره ولیدل شي نو ته به وایې ګوندې د بودیزم د فلسفې تر ټولو لوی ښوونځی و. د ټیټو، اوارو پراخو غونډیو دا سیمه انسان حیرانوي، خو هغه څه چې د

خواشيني وړ دي هغه بې رحمانه او خپل سري کيندنې دي چې د هرې غونډۍ په منځ کې چې پراخوالي يې (۲۵ - ۳۰) کيلو متره دی، ترسره شوي. بې بديل ختين او ستوکي آثار چې د هنرمند افغان د سحرګرو لاسونو د هنر او زمورږ د بې ساري معماری ښکارندوی وو، د نړيوالو قاچاقبرانو او مافيا په وسيله ولوټل شول. که چېرته د بوديزم د مذهب د سرواستي وادين د مهاياني طريقې پيروان د اتوم او سپوږمکيو په دې عصر کې ژوندي وای، نو ځان يې د هغه ځای د پاتې شونو په اور سوځاوه.

د نتيجې په توګه په لرغونو سيمو کې د قاچاقبرانو او دلالانو په وسيله د نامسوولانه او خپل سرو کيندنو يادونه کوو، چې له بده مرغه د علمي او سيستماتيکو څېړنو چارو ته يې کوم ځای نه دی پاتې:

۱ - هډه، للمه، پچيرو آګام، چپرهار، حصار شاهي، کونړونه، وت، نورستان وايګل دره، د لغمان اليشنګ او الينګار درې.

۲ - سنجد دره، سهاک، يخ دره، شيوه کي، د لوګر سګاوند، د لوګر جمشيد تخت، خروار او د خرخ ولسوالي، سيدانو تنګی.

۳ - د ګرديز ميرزکه، د آريوب ځائيو سيمې، سپينه شګه، د سيد کرم سيمې.

٤ - خوست، غزنی، زابل او د سيستان په چګيني کلا پورې اړوندې سيمې، د وزدولاغ، پوست ګاو، اميرانو زيارت.

۵ - د باميانو سره دره، فولادي، ککرک، ضحاک ښار او د يکاولنګ لرغونې سيمې، سيغنان او د هزاره جاتو اوسنی کهمرد.

٦ - ای خانم، دشت کلا، د شورتوغي شمالي برخې، ظلم کلی، درقد، د رستاق او خواجه غار سيمې.

۷- د شهـــروان سيمې، د زر ښـــار لـــرغونې غونډۍ، امام صاحب، د کندز چاردره.

۸- د ريوت دښتـــه، پـــريـــان، آستـــانـــه، د کـــاپيسا د مـــواي غره لمنې او د جبل السراج سيمې.

۹- پـــه ســـراى خواجه کې کافر سرخ، چينې غونډۍ او سکندر غونډۍ.

۱۰- د کوه صافي نازوکي او بچه خاک غونډۍ، د نادر ناو سيمې، د پايتاوې او توپ درې ځينې برخې.

۱۱- د کابل خندر غونډۍ، د سروبي ولسوالۍ د بازارها خوا سيمې.

۱۲- د بلخ زوړ ښـــار، د فـــريـــدون کلا او د نيمروز ولايت د پشوران کنګ کنډوالې.

۱۳- د غور لرغونې سيمې، فارياب، سمنګان، د رستم تخت شاوخوا.

۱٤- يمچک غونډۍ، او د طلا غونډۍ پخوانۍ کيندل شوى سيمه، او د جوزجان د شمال لرغونې غونډۍ.

۱۵- د وګړيو په وسيله د دلبرژين غونډۍ د کيندنو دوام.

۱٦- د بګرام د ســـيمې د عـــبدالله بـــرج د دېـــوالـــونـــو سويلي برخې او استحکامي برجونه.

۱۷- د باميانو د دوو (۵۵) متري او (۳۸) متري بوتانو د لرغونو مجسمو په ګډون د باميانو د سمڅو د دېوالي انځورونو ويجاړول او نورې ډېرې سيمې چې تر اوسه يې بشپړ معلومات په لاس کې نه لرو. يقيني ده چې د لرغونو آثارو د غلو له شره هيڅ سيمه خوندي نه ده پاتې. هيله من يو چې د صالحو ارګانونو او مسوولو چارواکو له خوا په دې برخه کې کلک او لازم تدابير ونيول شي.

## څلورم څپرکی:

# د لرغونو سیمو ثارنه او د لرغونو آثارو د لوټلو د مخنیوي لاره

څرګنده ده چې لرغوني سیمې په دوو طریقو څارل کېدای او د آثارو د راسپړلو مخه یې بندېدای شي:

۱ - له مسوولو ارګانونو سره د ولس بې دریغه مرستې.

۲ - په لرغونو سیمو کې د یوې ملي فریضې په توګه د هېواد د تاریخ او ویاړونو د ساتنې لپاره د وسله واکو ځواکونو (د کورنیو چارو، دفاع او استخباراتو د وزارتونو) ځای په ځای کول.

د مسئلې په توضیح کې ویلای شو چې پورتني دوه اصلونه په بشپړه توګه اصولي دي او له هره اړخه کولای شي چې نه یوازې آثار، بلکې لرغونې سیمې او مهمې او ارزښتمنې پدیدې په بشپړه توګه امانتې وساتي؛ خو دا دوه اصله هغه مهال رامنځ ته کېدای شي چې ټولنه او وګړی د پخوانیو وختونو د لرغونو آثارو او بایللي فرهنګ په منځپانګه، ارزښت او پایښت پوه شي چې د نیکونو قیمتي میراث یې دی. او د هغو راپاتې شویو فرهنګي میراثونو په لیدلو د نړۍ د هېوادونو په منځ کې خپل ملي هویت او د خپلې خاورې تاریخي قدامت په پرله پسې تاریخي زمانو کې درک کړي. لکه چې مخکې مو هم یادونه وکړه یو شمېر کسان شته چې د لرغونو آثارو له قاچاقبرانو سره ملګرتیا کوي او د

هغوی عمده دلیل ببوزلي، د سواد سیاسي پوهې او اقتصاد نشتوالی دی. لکه چې دا منو چې د ولس بې دریغه مرستې ته اړتیا ده نو ولس څرنګه کولای شي چې دا مرسته وکړي او د دولت له مزاج او فرهنګي سیاست سره سم چلند وکړي؟
مسوول مقامات لکه د اطلاعاتو او کلتور وزارت، د لرغونپېژندنې انستیتوت او د موزیم چارواکي دنده لري چې د عامه ذهنونو په روښانولو، د فرهنګ د بې بدیله ګټو او خوندونو او د قیمتي فرهنګي میراثونو په ساتنه کې په بېلابېلو ذریعو د وسله والو ځواکونو تر کارولو دمخه د لرغونو آثارو او سیمو د ژغورنې لارې ولټوي. یقیناً چې د رښتینې پوهې او پراخو تجربو نشتوالی او ډېر عقیدوي تعصبات د لرغونو سیمو او آثارو د ساتنې او ژغورنې په لاره کې ستونزې رامنځ ته کوي، خو باید دا ومنو چې باید له خبرو تېر شو او خپلو فرهنګي انساني اهدافو ته د عمل جامه واغوندو. او په پرله پسې توګه هغه لاره ووهو چې د موخې تللې ده. نو له دې امله دا اړخ ښايي تبلیغاتي او ترویجي جنبه ولري، په کار ده چې د ټولنې د مهمو بنسټیزو وسیلو څخه کار واخلو لاندیني مواد د یوې طرحې په توګه د لرغونو آثارو او سیمو په ژغورنه او ساتنه کې ګټور ثابتېدای شي:

- په ولس کې د لرغونو او فرهنګي آثارو د اصالت په اړه د تبلیغاتي لیکنو پاڼې خپرول.
- د افغانستان د فرهنګ د دښمنانو د شومو موخو او د لرغونو آثارو د غلا له امله د اوښتو زیانونو په ګوته کول.
- له مخورو، ملایانو، پوهو کسانو او د قومونو او قبایلو له مشرانو سره پرله پسې غونډې.

- د دیني علماو او روحانیونو په وسیله د شرعي او دیني بنسټونو له مخې د هېواد د نیکونو د قیمتي میراثونو د ساتنې په اړه د خطبو او وینا وړاندې کول.

- د ولس په منځ کې د هېواد د فضایلو، ویاړونو، بریاو او ملي هویت تثبیت د افغانستان د لرغوني فرهنګ د مادي او معنوي آثارو د موجودیت پر بنسټ.

- د جمعي ارتباطي رسنیو له لارې په پرله پسې توګه د مصورو او منثورو مقالو او مضامینو تنظیمول.

- د هغو څېرو او اشخاصو په ډاګه (رسوا) کول چې لرغوني آثارو او ملي شتمنۍ د ځیروونکي ځناور په څېر تر ستونې تېروي.

- د فرهنګي میراثونو او تاریخي آثارو او د ساتنې د قانون توضیح د چاپ او د سمعي او بصري تبلیغاتو له لارې.

- د چارواکو په وسیله د ولس لپاره په عملي او عیني داوطلبانه ترغیب سره د سیمو ساتنه او ژغورنه.

- د هغو چارواکو په وسیله چې په دې برخه کې مسلکي - وظیفوي مسوولیت لري په کلیو، بانډو او ولسوالیو کې د هېواد د ویاړمن تاریخ او هرې لرغونې سیمې معرفي کول.

- د سیمو ټاکل او په ګوته کول، ساتنه او پاملرنه یې سیمه والو ته سپارل او له هغو نه د مسوولیتونو کلکه پوښتنه کول.

- والیان، مستوفیان، پوځي قوماندانان، ملکان او مشران دې مکلف او مؤظف شي چې له ټاکلي پروګرام سره سم ژر ژر سیمې وګوري او په ولایتونو

کې د اطلاعاتو او کلتور د ادارو په وسيله د سيمې د حالت په اړه واکمنو مقاماتو، په ځانګړي ډول اطلاعاتو او کلتور وزارت ته راپور وکړي.

- د ولايتونو ښاغلي واليان د لرغونو آثارو او سيمو د څارنې او ساتنې لومړني مسوول کسان شمېرل کېږي. څرنګه چې د هېواد بريدپولې د ملي ناموس د ساتنې، د خاورې د تماميت او خپلواکۍ لپاره څارل کېږي، د تاريخي او لرغونو ميراثونو ساتنه هم همدغه حکم لري چې د هېواد د نورو مسئلو په برخه کې مطرح کېږي.

۲ - وسله وال ځواکونه له دې امره مستثنی نه دي، دفاع، د کورنيو چارو او استخباراتو وزارتونه د پوځي عظمت او پايښت په پام کې نيولو سره کولای شي د ټوليو د قرارګاو په رامنځ ته کولو، چې ځانګړې بودجه ورته ښېله شوې وي، دا ملي دنده پر غاړه واخلي او د هېواد او ملي نواميسو د ساتندوی يوه سرباز په توګه تر وروستۍ سلګۍ پورې د هېواد په لرې پرتو سيمو کې دا مهمه دنده ترسره کړي. د تاريخي ميراثونو د لوټوونکيو خاينو څېرو په نيولو او رسوا کولو کې لټي ونه کړي او په کلکه توګه يې مخنيوي وکړي.

د ملي دفاع، کورنيو چارو او استخباراتو وزارتونه دې په لرغونو سيمو کې د قوماندان سالارۍ او خپل سرو واکمنيو مخه په قوانينو او عملي احکامو سره ونيسي او د ولس په منځ کې دې ملي او ولسي يووالي ته د ملي نواميسو په ساتنې سره چې لرغوني آثار او سيمې هم پکې راځي، عملي جنبه وبخښي.

هر افغان هغه مهال د نيکه پګړۍ په وياړ سره په سر کېښودای شي چې د نيکونو له ميراث يا پاتې شونو سره وفا وکړي او بې ځنډه پر هغه لاره لاړ شي چې هغوی پرې تېر شوي دي.

د لرغونو آثارو او سیمو د ساتنې وروستی پړاو د لرغونو آثارو د ساتونکیو لپاره د جزایي او مکافاتي قانون طرح او نفاذ دی، چې شرعي او د مدني قوانینو جزایي برخې پکې راځي او دې قانون ته په پاملرنې سره له دې قانون څخه د سرغړونې پر مهال له تبعیض او له عاملینو سره له جوړجاړی پرته هغوی ته د اعدام تر بریده باید سزا ورکړی شي.

وزارتونه، تحصیلي او تعلیمي مؤسسې، پلان، فواید عامه، ښاروالیانې، کانونه او صنایع د مرستې په دې ګډ فعالیت شریک دي، د ښوونځیو او پوهنتونونو په تدریسي نصاب کې دې د فرهنګي او لرغونو آثارو د پېژندنې او توضیح په توګه مضمون ځای شي، چې ددې تاریخي امانت د ساتنې او پوهېدنې بنسټ له کوچنیوالی څخه تر ځوانۍ او وروسته د دندې پر مهال د هر محصل او متعلم په افکارو کې د ملي وثیقې د یوې پدیدې په توګه انځور شي.

## د افغانستان د فرهنګ په اړه مینه والو هېوادونو پاملرنه را اوړل:

د لرغونو آثارو او سیمو د ژغورنې، پېژندګلو، ساتنې او بیا رغاونې یوه لاره د نړیوالو کنفرانسونو او سمینارونو جوړول دي. سمینارونه کولای شي د هېواد او سنیو ستونزو تیاره کونجونه د لرغونو آثارو، سیمو او توکیو د ساتنې او بیا رغاونې لپاره روښانه کړي.

نړۍ همدا اوس لېواله ده چې د افغانستان د آثار او فرهنګ په لور، چې نور نو په ټوله بشري نړۍ پورې اړه لري، له افغانانو سره اوږه په اوږه او ګام پر ګام روانه شي.

د فرهنګي میراثونو د ساتنې او بیا رغاونې نړیوال سمینار چې د

(۲۰۰۲م) د مۍ له (۲۶-۲۹) مې نېټې پورې په کابل کې جوړ شو، زموږ د هېواد د فرهنګي میراثونو د ساتنې لپاره د مرستې لومړنی ګام و چې د المان، فرانسې، یونان، جاپان، پاکستان، آغاخان مؤسسې، د افغانستان د علومو اکاډمۍ او کابل پوهنتون کورنیو پوهانو پکې فعاله ونډه درلوده، د موزیم د بیا رغاونې، ترمیم او پراختیا او د تاریخي آبداتو په برخه کې پرېکړې او د پراخو مادي مرستو ژمنې وشوې چې د هغو له جملې څخه د جام منار ساتنه او د نړیوال فرهنګي او تاریخي لوی میراث په توګه د دې آبدې منل د اهمیت او ویاړ وړ دي. دا پرېکړه او تصویب د توکیو په کنفرانس کې په رسمي توګه اعلان شو او سند یې د افغانستان دولت ته وسپارل شو. نو د مادي مرستو د پراختیا او د هېواد د فرهنګي میراثونو د ساتنې او بیا رغاونې لپاره د مسلکي کدرونو د روزلو په برخه کې کولای شو د لاندنیو لېوالو او ملګرو مؤسسو څخه د متقابلو مرستو هیله ولرو.

۱- د یونسکو د سازمان په څرګندو هڅو او مرستو سره د هېواد د نورو تاریخي آبداتو آثارو او شتمنیو ساتنه او د سروې، پلټنې، پلان جوړونې او د عملي کار لپاره د بهرنیو هېوادونو کارپوهان رابلل.

۲- د هېواد د لرغونو آثارو د پېژندګلو او ساتنې لپاره د پانګې ورکوونکیو هېوادونو د متخصصینو او هر ډول مالي مرستو جلبول.

۳- له هېواد څخه بهر د موزیمدارۍ، ارکیالوجۍ، آبداتو او مهندسۍ په برخه کې د همدغو ځانګو جوړولو ته د چمتووالي لپاره د متخصصینو افغاني کدرونو روزل.

٤- د هېواد د فرهنګي او ثقافتي پرمختګ په لاره کې د علمي او

مسلکي څېړنو او پلټنو لپاره پوهانو او فرهنګي تجربه کارو ته بلنه ورکول.

۵- په نړیوالو کنوانسیونونو او (ICOMOS) کې د افغانستان د فرهنګي مرکز د شاملولو په اړه د پانګه ورکوونکیو هېوادونو ملاتړ.

۶- د ملګرو ملتونو د امنیت شورا ته د لرغونو آثارو او سیمو د ساتنې لپاره ځانګړي وړاندیزونه.

۷- د هېواد د بریدپولو د بندولو په برخه کې د ملګرو ملتونو په وسیله د لېوالو هېوادونو او نورې نړۍ مرستې.

۸- په بندرونو او بریدپولو کې د تجارتي مالونو د محصول د مرکزو او ګمرکونو کلکه څارنه.

۹- له امنیتي مرکزونو څخه په لیرې پرتو سیمو په ځانګړي ډول په ولایتونو کې هوایي ګزمې.

۱۰- د لرغونو آثارو او سیمو د ساتنې په برخه کې د نوي قانون نافذېدل.

۱۱- هغو هېوادونو ته بلنه ورکول چې پخوا یې د افغانستان د لرغونپېژندنې په برخه کې د سیمو د پلټنو او کیندنو تړونونه لاسلیک کړي وو. دا کار په ځانګړي ډول د اطلاعاتو او کلتور وزارت او د یونسکو په ګډ تصمیم سره ترسره کېدای شي.

## موزیمونه او شتمنۍ یې:

مخکې له دې چې د موزیمونو او د هغو د اړوند آثارو په اړه خبرې وشي باید یادونه وشي چې موزه یا موزې یا په ننني تلفظ موزیم (Museum) له دوو کلیمو څخه رغېدلی دی او په لومړي سر کې موزیمونه د الهو او ارباب الانواعو د الهام ځایونه وو. وروسته په کلیساو اطلاق شوه چې په هغو کې به د حضرت

عیسی (ع) او بی بی مریم مجسمې ایښودای کېدې او د هغو د ښکلا لپاره به هنري پدیدو تر ټولو ښه ظرافتونه هلته ښکاره کېده. یعنې (موز - ای - اوم) د ښکلاو ځای (Mus-e-um) ځکه چې تر ټولو ښه او مهم مذهبي اسناد، دعاګانې او ډېر نور سپېڅلي شیان به د دریمې میلادي پېړۍ په وروستیو کې، چې د روم د امپراتور والریانوس د سلطنت وخت و، ځای پر ځای کېدل.

د موزیمونو د جوړولو او پیل طرح عمدتاً د لرغوني روم او یونان پانګوالو رامنځ ته کړه، ځکه په هغه وخت کې پخوانی او انتیک شیان د فیلسوفانو او هم د پخواني اتیک (Athic) هنر مینه والو راغونډول او د هغو د پیدا ښت او څرنګوالي په برخه کې به یې بحثونه او مناظرې کولې. د موزیولوجۍ یا د موزیم دارۍ د څېړنیزو علومو له مخې د لرغوني عصر وګړیو یا اتیک دورې په دوو غورو موخو پخواني او لرغوني شیان ساتل او د تېرو یادګارونو د مجموعو په بڼه به ورسره وو:

۱- د پخوانیو د عزتمندۍ او وياړ او یا د هماغې کورنۍ او قبیلې د برومندۍ لپاره.

۲- د نیکونو د میراثي پدیدو په توګه.

نو د موزیمونو د پرمختګ د پیل بنسټیز بدلون په لرغونو ځمکو لکه یونان، روم، اناتولیه، لرغوني مصر او بین النهرین کې و. او د لومړي ځل لپاره په رښتیني توګه د موزیم بنسټ په مصر کې د پطلیموس (Potolomyus) په وسیله په (۳۰۰ ق م) کې کېښودل شو.

د یونان مشهور مؤرخ پلیني (Plinius) یادونه کوي چې د پتیراس (Pithras) په نامه یو کس د (۱۰۰۰۰) زرو دینارو کاسې وپېرلې چې په هغو

کې د اودیسیوس (Odysseus) او دیومیدس (Diomides) ترمنځ د جنګ د ډګر انځور کښل شوی و، او د یوه هنري شهکار په توګه او د پهلوانانو او خدایانو د زور ازمايلو په بڼه یې خپل میتولوجیک او اسطوره یې رنګ ښکاره د لرغونو آثارو د ساتنې مفکوره او طرح رامنځ ته کړه او د موزیم مفکوره له هماغه ځایه د لومړی بنسټ په توګه پیل شوه. له (۱۵م) پېړۍ څخه تر اوسه د نړۍ د زرګونو موزیمونو ترڅنګ، چې شمېر او نومونه یې په دې مجموعه کې نه ځایېږي او جلا مجلو ته اړتیا لري، له (۱۳۰) څخه زیات په فرد پورې اړوند او بې بدیله موزیمونه شته. د ساري په توګه د فرانسې د ګیمي، برټش موزیم، ارمیتاژ، د ایتالیې فلورانس، د پاریس لوور، بالتیمور متروپولتیان نیویارک، د هند ملي او دولتي موزیم او د استانبول موزیمونه یادولای شو. چې تر دغې نېټې وروسته موزیمونه د بېلابېلو برخو په بشپړتیا او پرمختګ کې د نړۍ په لومړي کتار کې ولاړ دي او د بشري او طبیعي تاریخ بېلابېل ډګرونه په ځان کې رانغاړي.

## په افغانستان کې د موزیم جوړېدل:

موزیمونه چې په عمومي ډول د لرغونو آثارو د خوندي کولو او پېژندنې لپاره وي، ټولنې ته د ننداري لپاره آثار وړاندې کوي او د لرغوني تاریخ په اړه د عامه افکارو په روښانولو کې غوره رول ترسره کوي. د علومو د نورو برخو ترڅنګه یې خپل ځای د ساتنې د یوه زېرمه تون په توګه ساتلی دی. موزیم د لرغوني تاریخ او لرغونو ځمکو د بېلابېلو دورو د موادو د سپړنې او توضیح یوازینی ځای دی او همدا رنګه د هماغې سیمې د تمدن او فرهنګ منعکسوونکی ګڼل کېږي. زموږ په ګران هېواد کې له (۱۲۹۷) لمریز څخه

وروسته چې لـه (۱۹۱۸م) سره سمون خوري، موزيم جوړ شو؛ خو د موزيم پېژندنې د نننې علم په توګه نه بلکې د موزيم لومړنی بنسټ په لومړنيو څيزونو او اتنوګرافيکو آثارو سره کېښودل شو. موزيم لومړی ځل د بالاباغ په ماڼۍ کې جوړ او د تاريخي او اتنوګرافيکو آثارو او مجموعې لکه وسلې، ملي جامې، د زرو تېوتې، خامک دوزۍ، جهادي توغونه (بيرغونه) او قلمي نسخې يکې ننداري ته وړاندې شوې. د هغه مهال د موزيم په نامه نه بلکې د لرغونو جنسونو د (صندوقخانې) په نامه يادېده. په (۱۳۰۳) لمريز کې چې لـه (۱۹۲٤م) سره سمون خوري د لرغونو او اتنوګرافيکو آثارو مجموعې لـه پاچاهي ارګ څخه د (کوټې باغچې) ودانۍ تـه ولېږدول شوې. په (۱۳۰۹) لمريز يا (۱۹۳۰) ميلادي کې دغـه آثار د دارالامان د بلديې ماڼۍ ته يا د کابل د اوسني ملي موزيم ودانۍ تـه ولېږدېدل. وروسې په بېلابېلو سيمو کې د افغانانو يعنې د موزيم د کارکوونکو لـه خوا او تر هغه وروستـه د بهرنيو لرغونپېژندونکيو د پلټنو لړۍ دوام وموند او آثار يې د غـور و فرهنګي او ثقافتي توکيو په توګه ننداري تـه وړاندې شول.

ښاغلي غلام محی الدين خان د کابل موزيم لومړنی کارمند غړی و، چې په نجراب، تګاب، خورد کابل، حضوري چمن، کندهار او ځينو نورو برخو کې يې د دغو آثارو لپاره په کيندنو لاس پورې کړ. هغه په هېواد کې د استاد علي احمد کهزاد څخه دمخه قانوني کيندنې ګڼلای شو. د (۱۹۱٤م) يا (۱۲۹۳) لمريز کيندنې په هېواد کې د لرغونپېژندنې لومړنۍ کيندنې دي چې افغانانو پيل کړي دي. د هغوی د پلټنو زېرنده په ملي موزيم کې د يونومورکي کس د موندلو آثارو په توګه د نورو بهرنيو پوهانو د ډېر شمېر کشفياتو په ليکه کې وشمېرل شوه.

له (۱۹۳۳م)-(۱۹۵۷م) پورې کلونو کې د کابل ملي موزیم پرمختګ وکړ او په (۱۹۵۷م) کې د یونسکو نړیوال سازمان د ښوونې او روزنې د وزارت د وړاندیز په بنسټ د کابل موزیم د تنظیم لپاره د (ژاک کوراتو) (J. Kurato) تر مشرۍ لاندې یو پلاوی (هیئت) چې ښاغلی ګبو (Gaboo) هم پکې و، د لرغونپېژندنې لپاره هېواد ته راغی او خپل نظریات یې په څلورو برخو کې رالنډ کړل.

۱- د موزیم د چوکاټ یا اداري جوړښت سمون.

۲- د لوښو یا د شیانو د پېرودلو لپاره د بودجې ټاکنه.

۳- د نوي موزیم یا د ښاروالۍ د پخوانۍ ودانۍ روښانه کول.

٤- د کابل د ملي موزیم د زېرمه تونونو نظم برابرول.

په (۱۹۵۸م) کې چې له (۱۳۳۷) لمریز سره سمون خوري د موزیم په اړه د یونسکو مالي او تخنیکي مرستې پیل او د علمي او د موزیولوجي د متداوله علومو له مخې په هېواد کې د بېلابېلو دورو او مدنیتونو آثار تصنیف او ډله بندي او د موزیوګرافۍ په برخه کې لازمې چارې ترسره شوې.

له (۱۳۳۷-۱۳۵۸) کال پورې د کابل ملي موزیم وتوانېده چې ځان ته ورته موزیمونه د هېواد په ولایتونو لکه غزني، هرات، کندهار، مزار شریف، فاریاب، ننګرهار او کاپیسا کې جوړ او ترلاسه شوي آثار په هغو کې ننداری ته وړاندې کړي. د دغو موزیمونو اداري تشکیلات په ملي مرکزي موزیم پورې تړلي وو چې ورځ په ورځ یې پرمختګ کاوه.

د غوايي د اوومې د کودتا په پایله یې په کابل کې د رامنځ ته شوي حکومت پر مهال تصمیم ونیول شو چې د کابل ملي موزیم په (۱۳۵۸) لمریز کې خپل موجوده ځای خوشې او د هغه وخت لپاره د سردار نعیم په کور کې

پرځـای شـي. د مـوزیـم چـارواکـو د مـقـامـاتـو او د وخـت د کـلـتـور د ریـاسـت لـه ټینگـارونو سره سره د موزیم د آثارو لـه لېږدولو څخه ډډه وکړه، خو دا کار ونه منل شـو او د وسلې پـه زور دغـه آثـار د ځـه د پـاسه یوې میاشتې په اوږدو کې لـه خپله ځـایه بې ځای شـول. تر یو کال وروسته د رژیم له بدلون سره آثار بیا په دارالامـان کې د کابـل ملي موزیـم تـه ولېږدول شـول. لـه (۱۳۷۱-۱۳۷٤) لمریز پوري په گوندي جگړو د کـابل د مـلي موزیم ټولـه شتمني لوټ شوه. او د موزیم پورتنی پوړ د ړندو راکټونو په ډزو وسوځېد.

موزیم په خپل حال په فرهنگي بېوزلۍ او بد حالت کې پاتې شو. د طالبانو د واکمنېدو سره دغـه موزیم نـور هم لـه یوه ژور خطرنـاک برخلیک سره مخامخ شو. د طالبـانو د مشر ملاعمر د فـرمان، او د اطلاعـاتو او کلتـور د وزیر او د هغه د همغاړو د سخت دریځ په بنسټ نندارې ته پاتې آثار چې د لویو کوشانیانو د دورې تر ټولو خالص آثار لکه د کوشاني شهزادگانو نیمه تنې او د مرنجان له غونډۍ څخه تر لاسه شوې د بودا ستوا ناسته مجسمه چې له اومې ختې جوړه او په بېلابېلو رنگونو ښکلې شوې وه د یو شمېر نورو آثارو په گډون چې په زېرمه تـونـونـو کې پـراتـه وو، مـات شول. پـه دې وخت کې د مـوزیم لـوی رییس لـه وخت څخه پـه گټې اخیسـتـنې سره د (ASPACH) مؤسسې پـه بلنـه د پـاکستـان د لاهور پـه لور لـه هـېواده ووت. خو لـه ټولو هڅو سره د نوي رژیم یعنی د اسلامي انتقالي دولت تر ټینگښت پورې موزیم په هماغـه پخواني څېر پاتې و. لـه نویو تصمیمونو سره چې د اطلاعـاتو او کلتور وزارت د فـرهنگي میراثونو د ساتنې او بیا رغاونې تر نړیوال سمینار وروسته یې نیولي دي، هیله شته چې د پوهو او مسلکي وگړیو په همت او ځیرکۍ به د موزیم د بیا رغاونې او د پاتې شتمنیو په برکت یو ځل بیا د کابل موزیم د سیمې د مشهورو موزیمونو په لیکه کې ودرېږي.

## له لاسه د وتلیو آثارو بیا ترلاسه کول او راغونډول:

هغه لرغوني آثار چې د جنګ پر مهال د قاچاقبرانو او د دلالانو په وسیله له لاسه وتلي، بهرته تللي او د نړۍ د بازارونو په بېلابېلو ښارونو کې خپاره شوي د بېرته راغونډولو په لاره کې یې یو مهم ګام د دغو آثارو بیا موندنه ده. دغه لرغوني آثار زیاتره په ګریکو - بودیک هنر پورې اړوند وو، چې د هډې، بګرام، کندز، غزني، میرزکې، غور او آی خانم له حوزو څخه ترلاسه شوي وو.
په دې برخه کې دوه بنسټیزې طرحې اغېزناکې دي:

۱ - د منقولو آثارو راغونډول چې د ټولنې د حکمي کسانو سره دي، البته د ټاکلې بودجې په تخصیص سره د هغو آثارو پېرل چې د موزیم د آثارو او یا د لرغونو آثارو د زېرمه تونونو په راجستر کې شامل نه وي.

۲ - له افغانستان څخه د ورکو شویو آثارو په برخه کې د یونسکو د سازمان د سراسري اعلامیې خپرول او د افغانستان دولت ته یې بېرته ورکول.

په دې ځای کې باید څرګنده شي چې داسې ورک شوي آثار په عمومي توګه که چېرته د هېوادونو په دولتي موزیمونو کې وي، نو د اعلامیې پر بنسټ به یې بېرته راګرځېدل آسان وي.

هغه شمېر آثار چې د کلکسیونرانو په وسیله راټول شوي او د هغوی د کورونو ښکلا او ځلا ده، یونسکو دې یې مخکې د قیمت په بدل کې وپېري او د نورو نړیوالو امنیتي سازمانونو او د بشر د حقوقو د سازمان په مرسته دې یې بیا هېواد ته راستانه کړي.

موزیم او چارواکي دې په هغه وخت کې چې په کار لاس پورې کړي، د انټرنېټ له لارې ددې آثارو له موجوده راجستر، علمي نومرې، انځور، د

لرغونپېژندنې د مؤسسې له څېړنيز راجستر، د کشف له کال او کاشف ټيم څخه نږيوال خبر کړي.

د هغو آثارو په برخه کې چې له موزيمونو او لرغونو سيمو څخه په قصدي توګه پټ شوي دي، دولت د اعلان، حقوقي غوښتنو او د تاريخي او فرهنګي ميراثونو د ساتنې د قانون د مندرجاتو په توضيح او تشريح سره کولای شي په بېلابېلو وختونو کې يې ورو ورو ترلاسه کړي خو موزيم به په دې برخه کې خپل فعال رول ولوبوي.

يوه له هغو مهمو او بنسټيزو مؤسسو څخه چې د لرغونو آثار د ساتنې او تبليغاتو، د لرغونو سيمو د څارنې او ساتنې، د ويجاړيو بهير، د قاچاقو، خپل سرو کيندنو او نور د مخنيوي په برخه کې يې د يوې لسيزې په اوږدو کې د مجلاتو او بروشرونو (ځانګړو نشراتو) په خپرولو او نورو پراخو هلو ځلو سره لارښونو خپلو ته دوام ورکړ د (ASPACH) مؤسسه ده چې بيا يې چارې د مېرمن نانسي دوپري (Nancy Dupree) په مشرتابه پرمخ تلې. دا مؤسسه کولای شي په خپلو پراخو تجربو د آثارو د رښتينې راغونډونې په برخه کې د يونسکو او د اطلاعاتو او کلتور وزارت په ګډه ملګرتيا، اغېزناک رول ولوبوي.

نتيجه:

زموږ ګران هېواد افغانستان يو لرغونی هېواد دی. زرين تاريخ يې د ترسره شويو څېړنو او پلټنو له مخې له (۵۰ - ۷۰) زرو کالو ډېر سابقه لري. او په شاوخوا سيمه کې يې تر ټولو زيات، ګڼ شمېر وياړمن آثار چې تر تاريخ د مخه او تاريخي دورو پورې اړه لري او د نړيوال فرهنګ و تهذيب په لومړۍ ليکه کې دريږي، په خپله لمنه کې خوندي کړي دي، او تر ټولو لرغونی هېواد دی چې حدود يې له ميلاد څخه د مخه په دويمه او دريمه زريزه کې تر بين النهرين،

مديترانې، سويل ختيزې او منځنۍ آسيا او تر چيني ترکستان کم نه وو. او په تاريخي دورو کې يې تاريخي برم بې ساري و. د ورېښمو لاره يا د کاروانونو هغه لاره چې د چين له لويانګ څخه د مصر د سکندريې تر بحري سرحدونو او ايژين پورې غځېده، نننی افغانستان، لرغونې آريانا او لرغونی باختر د دغو کاروانی لارو د يو ځای کېدو ځای و. نو هغه څه چې يې د لرغونې نړۍ له فرهنګي تمدن او زېرمو څخه تر لاسه کړي وو، تر ټولو غوره هنري، تهذيبي او فرهنګي ميراثونه يې يونان، روم ميډيا، اناتوليې او ليديا او بيا د پخوانی ختيځ بهارت تر ځنډو سکيتا او نالندا پورې رسولي او خپاره کړي وو.

د دريم داريوش تر مشرۍ لاندې د هخامنشي امپراتورۍ د يرغل د مقدوني سکندر، سرمستانو، پارتيانو او د دريم انيکوش تر مشرۍ لاندې د سلوسيديانو د يرغلونو پر مهال له (۴۷۰ ق م – ۲۵م) پورې دا ځمکه د آسيا مشهوره سيمه وه چې د هېواد لويو نوميالو، لکه: باختريانو، کاپيسايانو، نورستانيانو او تخاريانو يې په مقابل کې په مقاومت لاس پورې کړی دی چې د پاروپاميزاد د لمنو د نامتو سالار او کسيارټ (Oxyart) او د رخشانې (Roxana) ميرانې د نړۍ د فاتحينو زړونه پر ځان مين کړي دي او په پايله کې يې واکمنۍ يوه پر بله پسې تر ميلاد ډېر دمخه له منځه لاړې او پر ځای يې د ګډون زېږنده داسې فرهنګ پاتې شو چې ددې ځمکې هنرمند او هنرپال ولس هغه ثقافتي پديدې د خپلې نامتو ځمکې د ضمير له هنر سره يو ځای واخيستلې او شتمن او بابرمه مدنيت يې رامنځ ته کړ. نننی کول په دې ثقافتي ميراثونو وياړي.

هو! له همدې ځای ده چې لرغونپېژندنه، موزيمونه، ګالريانې او څېړنيزې مؤسسې د افغانستان د وياړلي تمدن د خپرېدو لپاره په چټکۍ سره تاريخي لاره

ووهي او د دې ځمکې پوړونه او قشرونه د وياړنو په ګډون تر څېړنې او پلټنې لاندې نيسي. لرغونپېژندنې او د دې بهير کارمندانو له هماغو (۱۸۲٤-۱۹۱٤)، له (۱۹۱٤-۱۹۲۲) او له (۱۹۲۲-۱۹۹۰م) پورې د افغاني، فرانسوي، امريکايي، جاپاني، الماني، هندي، ايټالوي او پخواني شوروي د پلټيوونکيو په ګډون زموږ د هېواد تاريخي واقعيتونه له يونانو - باختري، کوشاني، کوشانو - يفتلي او د لرغونې، منځنۍ او نوې تيږې د دورې په ګډون د اسلامي دورې او د فلزاتو د دورې تمدن چې د موهنجودارو، هړپه او د ميزپوتامې يا بين النهرين مدنيتونو ته ورته او سيال دی، کشف او د نړيوالو ننداري ته يې وړاندې کړل. زموږ د تاريخ په پاڼو کې يې ساري زياتونې وشوې. په همدې وخت کې موږ د همدې شتمنې او لرغونې سيمې په برکت د لرغونپېژندنې د مډرن علم نوي تنبغي او څرکونه د هېواد د ځوانانو په وجود کې وليدل او هغوی غلام محی الدين خان لومړنی کيندونکی د کابل موزيم غړی او د هېواد بل نوميالی زوی پروفيسور ډاکتر زمريالی طرزي دي چې د هېواد د لرغونپېژندنې په رښتينې وده او د ځوان کول په روزلو کې يې ډېر زيار ګاللی دی، چې د قدر او ارزښت وړ دی.

د ملګرو او ليوالو هېوادونو د نورو لرغونپېژندونکيو په کشفياتو او موندنو سره کولای شو تر تاريخ د مخه او تاريخي دورې او سيمې داسې په ګوته کړو:

د فقيد پروفيسور لويي دوپري، تروسډل، ډالس، مونيه، کرل، هانري پول او رومني ګريشمن کيندنو په مندیګک، سرخدک، سفيدک، د تخار شورتوغی، ګنجشکان درې، کور درې، غار مار، سمنګان او آقکپرک سيمو کې، چې تر تاريخ د مخه دورې (لرغونې، منځنۍ، او نوې تيږې او د فلزاتو) يې

په ځان کې رانغښتی، یو ځل بیا له (۲۰۰۰-۴۰۰۰ ق م) پورې تاریخ چې د لرغونپېژندنې له مخې یو مهم کلتوري عصر شمېرل کېږي، مشخص کړ.

په نجراب، حضوری چمن، کندهار او خورد کابل کې د غلام محی الدین خان په پلټینو سره د یوې لنډې دورې په ترڅ کې یو شمېر آثار راغونډ او کابل موزیم ته وسپارل شول.

د ښاغلي ډاکټر طرزي تر مشرۍ لاندې د افغاني لرغونپېژندونکیو په وسیله د هډې د اوښ غونډۍ (۱٤) ځله پرله پسې علمي او میتودیکي کیندنې چې نوموړې سیمه د گندهارا د حوزې د رنسانس د گریکو - بودیک هنر د دوران ښکارندویه وه، د دې لامل شوې چې د گندهارا وروستی بې ساری هنر چې پر سر واستي وادین مهایاني طریقې او بودایي تهذیب او تفکر یې اړه درلوده، کشف او د هېوادوالو او نړیوالو ننداري ته وړاندې شو. په سرهء کوتل کې د ډاکټر شلومبرژه هڅو، په آی خانم کې د پروفیسور تدي ایټالوي علمي پلټینو او د جلال آباد په هډه او نورو سیمو کې د ښاغلی برتو کیندنو د هېواد تر اسلام دمخه خوی بوی په راجوتولو کې زښتې ډېرې زیاتونې رامنځ ته کړې. ددې هڅو نتیجې هم د افغانستان په ملي موزیم کې ننداري ته ایښودل شوې وې. خو ډېر وخت لا نه و تېر چې د علم او تمدن د جنایتکارانو په یرغلونو کې په لومړي پړاو کې په ولایتونو کې غیر منقول موزیمونه لوټ او بیا په (۱۳۷۱) لمریز کې د کورنیو جنگونو له امله یوازې ملي موزیم ونه سوځېد، بلکې ډېره برخه آثار یې چور شول او له هېواد د باندې ووتل او یو پر بل پسې لکه د تندر د پېښو په څېر د هېواد ببلاببلې لرغونې سیمې، حوزې، غونډۍ، درې او رغزي د پردیو په ځانگړې ډول د عربانو د لاس ښکار شول. د نړۍ لویې او بې ساري مجسمې او هېښنده شهکارونه د طالبانو او د هغوی د ملاتړو په وسیله

منفجرشول او په سلهاو نور جنايتونه وشول. همدا رنګه د آثارو د موندنې لپاره ددې هېواد د خاورې زړه ژيرلوډېرې ځپړنيزې ستونزې رامنځ ته کړې.

د رژيم له بدلون او د اسلامي انتقالي دولت په جوړېدو سره د هغې پوهې او پروګرامونو له مخې چې د اطلاعاتو او کلتور وزارت يې لري، دا هيله شته چې د لرغونو آثارو ډېر شمېر ستونزې حل شي او ددې ځانګې کارمندان د مسووليت په احساس سره عملاً د لرغونو آثارو د بيا رغاونې، پېژندګلوۍ، پرمختګ او ژغورنې په برخه کې په کار لاس پورې کړي.

د لرغونو آثارو د ژغورنې او له لاسوهنو څخه د ساتنې يوازينۍ لاره د نوي قانون انفاذ، د عامه نظر يووالی او د اسلامي اصولو او مدني قانون له مخې د روحانيونو تبليغات، نړيوالې مرستې په ځانګړي ډول د امنيت د شورا، د بشر د حقوقو د سازمانونو مرستې دي.

په کابل کې د (۲۰۰۲) ميلادي کال د مۍ له (۲۶-۲۹) نېټې پورې چې د (۱۳۸۱) له غوايي سره سمون خوري، د فرهنګي ميراثونو د بيا رغاونې او ژغورنې نړيوال سمينار دا لاره اواره کړه چې نړيوالې ټولنه يوځل بيا دې کار ته پاملرنه وکړي چې د افغانستان بې بديله او بې سارې لرغوني آثار يوازې د افغانستان په ولس پورې اړه نه لري بلکې د عام بشريت په تمدن پورې اړه لري نو بايد په بيا رغاونه او له ويجاړۍ څخه په ژغورنه کې يې هڅه وشي.

بايد تجربه کار هېوادپال کدرونه په دې برخه کې ورووزل شي او په علمي او ګټوره توګه د هېواد د تمدن او فرهنګ په وړاندې پراته لوی کارونه ترسره شي.



# Bibliography


1. Goetz (h.), Indien in Kunst der Welt ... Baden - Baden, 1964.
2. Kuwayama (Sh.), The Turki Shahis in Afghanistan, East and West Vol. 3-4, Is Meo 1976.
3. Iran (W.W.), Euthydemos and Baktrain, Darmstadt, 1969.
4. Embree (A.T.), Wilhelm (F.), Indien Geschichte des Subkontinents on ds, Indus Kultur bis Zum beginn ds Englichen Hersch aft Frankfort, 1967.
5. Prof. Dr. Zemer (T.), "Tapa-e-Top-ekalan in" South Asian Archaeology, Rome 1990.
6. Inghold (H.), Gandhara Art in Pakistan, 1957.
7. Rudenko (S.), The Siberian Collection of Pets I, Moscow, 1962.
8. Trever (K,), Relics of Graeco - Bactrian Art, Moscow, 1940.
9. Marshall (J.H.), Taxila, Vol. 8, Cambridge, 1951.
10. Schlumbsgs (D.), The Excavation at Surk - Kotale and the Problem of Hellenism in Bactria and India, London, 1961.
11. Barthoux (J,), Les Fouilles de Hadda, figureset, figurines, Album MDAFA, Paris, 1930.
12. Puri (B.N.), India under the Kushanas, Bombay, 1965.



له ختې څخه جوړ د بودا د مجسمې سر چې د هډې له اوبن غونډۍ څخه ترلاسه شوی او په دریمه - څلورمه میلادي پېړۍ پورې اړه لري.



له اومو ختو څخه جوړ د بودا ستوا د مجسمې سر چې د هډې له اوبن غونډۍ څخه ترلاسه شوی، په دریمه - څلورمه میلادی پېړۍ پورې اړه لري.



د یوې هندي آلهې سر چې له اومو ختو څخه جوړه شوې او د سرو زرو اوبه ورکړی شوي د
هډې له اوبن غونډۍ څخه ترلاسه شوې او په دریمه میلادي پیړۍ پورې اړه لري.



د هډې له اوبن غونډۍ څخه ترلاسه شوې د گندهارا د هنر د یوه بودایي راهب د مجسمې
سر چې په دریمه - څلورمه میلادي پیړۍ پورې اړه لري.



د هډې د اوښ غونډۍ څخه د ترلاسه شویو د (څلورمې - پنځمې میلادي پېړۍ)
د (دهرماچکرا پراوا رتنا مودرا) او (واجراپاني) او دوو برهمني
راهبانو د مذهبي زده کړې ټولګی.



د یوه بودايي راهب سر چې د گندهارا اصیل هنر هلنستیک (څلورمه - پنځمه م) پورې اړه لري او د هډې له اوبن غونډۍ څخه تر لاسه شوې دی.



د غوري دورې د جام مینار د منځنۍ برخه په پخو خښتو او کوفي لیک سره.



د غاړې امېل له سرو زرو او قیمتي ډبرو څخه.



د ګنډ د سرو زرو ګاڼه چې له طلا غونډۍ لاس ته راغلې ده.



د غاړې امېل د سرو زرو دوه ګاڼې



د جامو د سرو زرو ګاڼې چې د شبرغان له طلاغونډۍ څخه تر لاسه شوي.

**د پوښتنې د عکسرونو شرح:**

الف: له هډې ځخه ترلاسه شوی د دویمې - دریمې میلادي پیړۍ د بودا د مجسمې سر چې له ستوپ ک ځخه جوړ شوی دی.

ب: ځپلي ډوله (بیضوی شکل) او سنگ مرمر (مرمر کانړی) ځخه جوړه مجسمه چې یوه برخې ۳ متره لوړوالی لري، د آی خانم له عبادت گاه ځخه ترلاسه شویده کومه چې د دریمې پیړۍ مخکې له میلاد ځخه هلینیستیک مجسمو ځرگندونه کوي، اوس د ننداري لپاره د جاپان پخوانی مشرقی آثارو موزیم توکیو کښې ایښودل شویده، افغانستان حکومت ته بې له شرطه استول کیږي.



## د لیکوال لنډ ژوند لیک

**محقق نظر محمد عزیزي** د سلطان محمد عزیزي زوی، په ۱۳۳۱ هجري لمریز کال د کابل د ښار په بارانه کې زېږېدلی دی.

### زده کړې:

لومړۍ زده کړې یې د کابل د تنودسازۍ په ښوونځي او ثانوي یې په اماني عالي لیسه کې سرته رسولې. په ۱۳۴۷ هـ ش کال د کابل پوهنتون په ادبیاتو پوهنځی کې شامل شوي. وروسته د ارکیالوژي انستېوت ته تبدیل او د هغې غړیتوب یې ترلاسه کړی دی. په ۱۳۵۰ هـ. ش کال د لرغونپوهنې په څانګه کې د لوړو زده کړو له پاره المان ته تللی او د المان د وایمر په انستیتوت او همدارنګه د ایتالیا، سویس او اطریش په هیوادونو کې یې د لرغونپوهنې په بیلا بیلو څانګو کې لوړې زده کړې ترسره کړې دي.

### علمي دندې:

په بیلا بیلو علمي او ټولنېزو کلیدي پوستونو کې د دندو د سر ته رسولو په لړ کې په ۱۳۵۷-۱۳۵۸ هـ. ش کلونو کې د کابل موزیم رئیس و، اوس د افغانستان د علوموا کادمي د کوشاني څېړنو رئیس، د اکاډمي د علمي شورا غړی او د کابل پوهنتون د اجتماعي علومو پوهنځي د لرغونپوهنې استاد دی. علمي رتبه یې محقق ده. د کوشانپېژندنې او د تاریخي ابداتو د ساتنې په اړه یې بیلا بیلو نړیوالو سیمینارونو کې برخه اخیستې، د هیواد په مرکز او ولایتونو کې یې له نورو سره په ګډه او ځانله له ۲۵ په زیاتو اصولي او علمي کیندنو کې او تر ۱۲۳ ځلو څخه زیاتو د تاریخ څخه دوراندې زمانو او تاریخي آثارو په اړه یې په تخصصي سروې ګانو کې هم ونډه اخیستې ده.

### علمي آثار:

تاریخ امپراتوری کوشانیان (دری ټوکه)، هده ناګارهارای قدیم (دوه ټوکه) د رباطک، د لوی کنشکا د واکمنۍ د عصر او ایوتدموس یونانو باختری پاچا په اړه علمي څېړنیزې رسالې او همدا اثر (لرغونپېژندنه په افغانستان کې).
همدارنګه یې تر ۱۱۲ زیاتې علمي څېړنیزې مقالې د هیواد په مطبوعاتو کې خپرې شوې دي.




**د اریک د ګرځنده کتابتونونو د خپرونو لړۍ**
**پرله پسې نومره ۱۰۴**